# پنجاب

او

# پښتانه

(سکھه شاهي دور)

ليکونکے

خواجه محمد سائل بهادر کلے
پېښور

# پنجاب

او

# پښتانهٔ

(سِکھه شاهي دور)

ليکونکے

خواجه محمّد سائل بهادرکلے

پېښور

د کتاب نوم ———— پنجاب او پښتانهٔ

د لیکونکي نوم ———— خواجه محمد سائل

د چاپ کال ———— جنوري سن ۲۰۰۰ ئهٔ

شمیر ———— پینځه سوه (۵۰۰)

بیعه ———— شپېتهٔ (۶۰) روپۍ

پرلیس ————

# دَ یکوونکي نور چاپ کتابونه

۱: عبدالحمید بابا ـ ژوند او شاعري

۲: رومانویت او عبدالحمید بابا

۳: "ګوډې اسپې"
دَ باړه مومند تاریخ جلد اول

۴: دَ باړه مومند تاریخ جلد دوم

۵: هِندکي او هِندکو

# فهرست

# پنجاب

قدیم تذکره نګاران او مؤرخین که هرڅو د پنجاب په سیمه د ملتان او لاهور ذکر کوی. او شاهنامه نویسی او نور کتاب ښکاری چې د دغه دوو ښارونو ذکر په خپل اشعارو کښې راوړی. خو دغه بیکونکی د پنجاب په نوم د اوسنی خاص علاقې ذکر نه کوی. د آئین اکبری په صفحات چې موږ د کوم پنج دوآب تحریر وینو نو دغه پنج دوآب هم اوسنی پنجاب څخه څه خاص مطابقت نه خوری، د پنجاب نوم هغه وخت رواج او شهرت بیا موندی چې سکهه مت د دوآبه پنج، رچنا، باری ریا ماڼجهه) او بست جالندهر یعنی پنځه دریا بونو (۱) جهلم[1] چناب (۱۱) چناب راوی (۱۱۱)، راوی بیاس (۱۷) بیاس ستلج ترمینځ

---

[1] پورس ریورواړ د جهلم او چناب ترمینځ دوآب چج حکمران وو چې سکندر اعظم څخه د جنګ دوران ګرفتار شو.

لپوته علاقه باندې قابض شو او دولته د سکهانو یو
مستقل حکومت قائم شو. خوشحال خان خټک د پښتو ادب
اولنی لیکونکی معلومیږي. چې د پنجاب ذکر یې خپل یو شعر
کښې په دې ډول راوړی،

شعر

ملک یې وو راکړے په پنجاب کښې متصل
حُکم د بادشاه وو صادر شوے په پرېښول

د پښتو ادب یو بل شاعر رکن الدین ابنِ حافظ مُنیر
د خپل پیر مُرشد په ستائینه کښې د پنجاب ذکر داسې
کوي.

شعر

خود فانی، په دۀ آباد شهٔ
په پنجاب جلوه بخشنده شهٔ

پښتانهٔ شعراء څلورم ټوک
ص ۹۷۵

گوپال داس لیکی،

" اگرچہ پنجاب اُس ملک کا نام ہے جس میں پانچ دریا
ستلج، بیاس، راوی، چناب، جہلم بہتے ہیں اور دریائے
سندھ جو درمیان ہندوستان و افغانستان
کے حائل ہے. پنجاب کے دریاؤں سے نہیں ہے لیکن
بہ عہدِ سرکارِ انگریزی جو حدود ملک پنجاب مقرر ہوئی ہے

"اُن سے معلوم ہوتا ہے کہ یہ ضلع منجملہ اضلاع پنجاب سمجھا گیا ہے"
(تاریخ ضلع کیمبلپور ص۴)

دَ مغل په دورِ حکومت کښې مُلتان او لاهور اهم مقام حاصل کړے وو دا دواړه ځايونه چې يوه زمانه محض باندې وې او هندوستان ته دَ ټکر اټک دوران دَ تجارتي کاروان پړاؤ او منزل وو. دَ لويو ښاريو شکل اختيار کړو. دا دواړه ځايونه دَ دوو صوبو مراکز شول چې حدود يې تر جهلم محدود وو. او جهلم نه راپورته افغانستان وو. دَ محمودِ غزنوي راسې پنجاب دَ مُسلم شاهانو ماتحت وو. او مختلف اَدوار کښې مُسلمانان امیران او جاګيرداران په دې سيمه قابض وو.

دَ دريابې سندھ او دريابې جهلم تر منځه پرته علاقه "سندھ ساګر" دَ قديم آريائي دور نه غيرآباد شاړه، اُوچته برخه يې ريګستاني اُوچته عريزه وه. دَ ګندهارا شاهانو دَ ټيکسلا په مقام دَ خپل حفاظت په غرض ګرمائي صدر مقام جوړ کړے وو. چې دَ دريابې سندھ دَ موجونو په سبب تر ډيره حده دَ بهرني قوتونو دَ حملو نه محفوظ وو. دَ سندھ ساګر په زمکه ايبټ آباد، مري، حضرو، حسن ابدال، راولپنډي،

فتح جنګ، رُهتاس، جلال پور، پنډ دادن خان
چکوال، خوشاب، لیّه، کوټ ادو، مظفرګړه، خانګړه
اورنګپور وغیره ښارونه ډیر وروستو آباد شوي
دي. او لکه د ټیکسلا قدیم تاریخي حیثیت نه لري
د سند هساګرنه علاوه پښتانه د چج، رچنا، باري
او جالندهر په دواب هم قابض وو. مُلتان، قصور
سرهند، جالندهر، فتح آباد، بوپال، ټهونک او
روهیلکنډ وغیره ځایونه خو پیږدي چې د مالوې، ګجرات
او دکن په علاقه هم کښې شمېر پښتانه آباد وو، او
بنګال، بهار خو یوه زمانه د پښتنو ګړه او خاص ځایونه وو
د تاریخ پنجاب ځینې مورخین لیکوال د پنجاب
نوم قدیم توار یخونو کښې د لټولو کوشش کوي. او
ښه قسم دلائل پېش کوي. خو صحیح داحقیقت
بېخي هېر وي:

١: د قدیم تاریخ نه مخه د ګندهارا مستقل سرحد
نن دریاب جهلم تعیني دی. دریاب جهلم نه
ښکته زیات علاقه د ګندهارا او هندوستان
ترمینځه No Man Land او ښاذ و نادر
د یو بل حکومت ما تحت وه. او ښاید که دلته خلق
آباد وو.

۲: دَ پنجاب سیمه دَ سیند یعنی دریا یی جهلم نه تر دریا یی چنا میدانی وه او دَ غشی تورې په زمانه جنګ آباد او ښارونه دَ غزونو په سر یا خوا کښې جوړ شول.

۳: دَ پنجاب میدانی سیمې دَ هند په لار پرتې وې او هره لمحه بهرنی پوځونه ورتونو پاتمال کولې.

۴: دَ پنجاب سیمه دَ زیات سیلابونو په سبب غېر آباده او ځنګل وه.

۵: دَ موجوده افغانستان نه دَ بنون، کومل او بولان په لار ملتان دَ تجارتي کاروان پړاو او منزل وو. او دغه ځای نه دَ سند سیند په لار هندوستان څخه تګ راتګ او تجارت عام وو.

۶: دَ خیبر او کُرم په لار لاهور، هندوستان څخه دَ آمد و رفت پړاو او منزل وو.

۷: دَ مُلتان او لاهور حیثیت محض دَ یوې بانډې او کاروان سرایې وو. او دَ هند سرحدات سرهند نه شروع کېدل.

دَ تاریخ لوستو څخه څرګندېږي چې دَ غزونو دَ نیشتوالی یا زیات سیلابونو په سبب دَ دریا یی جهلم ر دَ ږک وېد وتاستا" او دریایی راوی ر دَ ږک وېد پاروسنی = پرو وشني: پرویښنی)

تر مینځ دوآب کښې ډېر کم خلق وسېدل. راجه پورس
که هر څو د دریابې جهلم او د دریابې چناب د
کوهستان کرتنیس ± اسینو او د مهابهارته = چندرا
بهاګا، تر مینځ په دوآب حاکم او پادشاه وو. خو اندازه
دا چې د هغهٔ پایه تخت به اروموړ د دغه دوآب په
شمالي اړخ د غرونو څوا کښې وو ځکه چې د دغه وخت
د حالات تحفظ او جنګي ضروریات تر څه د ملک صدر
مقام د غرونو څوا کښې لازمي وو. او کارندهٔ، کاشتکار
یا مال څروونکی شپانهٔ به شاذ و نادر د بهرنی قوتونو
د حملو له وېرې میداني علاقو ته راکوزېدل. پنجاب
په ورو ورو ځل د مُغل حکومت دوران هغه وخت
زبر دست اهمیت حاصل کړو. چې هغوئ د هند سُلطنت
څخه د صوبهٔ کابل شمولیت اهم محسوس کړو او د صوبهٔ
کابل اخراجات که هر څو حاصلات نه سېوا او زیاتوو
نو د دهلي سُلطنت د تحفظ په خاطر دا ګے د نورو
صوبو د محصولاتو نه پوره کېدو. د دې عنته فائده
دا وه چې مُغل سُلطنت تر کافی مودې د بېروني حملو
نه محفوظ وو. خو هر کله چې دهلي دربار د صوبهٔ کابل
د اهمیت نه غافل شو نو د نادرشاه او احمدشاه
ابدالي د حملو ښکار شو. د مُغل سُلطنت هند ټوټې ټوټې

شو. مرهټه او سکهان یې واکداران شول. خو د
انتظامي صلاحیت د کمي په سبب ډېر ژر په زوال شول
او د سیاسي انتظامي صلاحیت خاوندان انګرېزان د
دې ملک مالکان شول.

د تاریخي شواهداتو نه ظاهر ده چې د دریابې جهلم
نه راپورته د ګندهارا صوبه د سلیوکس د شکست په
نتیجه کښې د موریا سلطنت حصه شوه خو د هند
سلطنت سره د الحاق باوجود د ګندهارا خپل انفرادي
حیثیت قائم وو. مغل که هر څو د درۂ خیبر په لار د
سلطنت هند حاکم شو. خو اکبر اعظم د صوبۀ کابل
د شمولیت باوجود د دې سیمې زوړ حیثیت او شکل بدل
نۀ کړو. البته د مغل حکومت دوران د کشمیر د
شمولیت او الحاق په سبب د ټیکسلا په ځای حسن ابدال
مرکزي حیثیت حاصل کړو او د سند هساګر اهم ښار او د
مغل یو اهم جنکشن شو.

رنجیت سنګه وروستنی مهاراجه وو چې د دریابې جهلم
او جمرود ترمینځه پرته علاقه یې په خپل سلطنت
کښې شامل کړه او دا علاقه د صوبه پنجاب برخه شوه.

د ۱۸۵۷ء د جنګ آزادۍ دوران د انګرېز سرکار په
حمایت او وفادارۍ د پنجاب د سکهانو د پښتنو

دَ ځينې نوابانو اربابانو بر وخت امداد دَ دې
علاقې په سميت دوچند کړو. او انګرېز سرکار درياۍ
ستلج نه تر دهلي ټوله علاقه هُم دَ پنجاب کمشنرۍ
څخه شامل کړه. دهلي څخه مُوده پس پنجاب نه
جُدا شو. سونی پت نه ترجمه ود صوبهٔ پنجاب شو.

انګرېز سرکار سنه ۱۹۰۱ کښې دَ سکه سُلطنت صوبه
پنجاب نه دَ مُغل سُلطنت صوبهٔ کابل څخه حصه جُدا کړه
او دَ سرحد په نوم يې يوه بېله صوبه تشکيل کړه. دَ
دې نوي انتظامي بندوبست تحت دَ درياۍ جهلم او درياۍ
سنده ترمينځ کافي علاقه دَ صوبهٔ پنجاب برخه شوه

دَ پاک بهارت تقسيم دوران دَ پنجاب يوکم دېرش [۲۹]
ضلعو کښې دَ مغربي پنجاب شپاړس ضلعې دَ پاکستان
او باقي پاتې دَ مشرقي پنجاب ديارلس [۱۳] ضلعې دَ بهارت
په قسمت شوې. بهارت دغه ديارلس [۱۳] ضلعې درې برخې
کړې. يوه برخه دَ هماچل پردېش، دويمه دَ هريانه
او دريمه دَ مشرقي پنجاب حصه شوه. او دغسې دَ
سکه سُلطنت نظرياتي او تصوراتي سرحدات ګډ وډ
او ختم شول.

پنجاب دَ پښتنو په کوشش، جد وجهد او جهاد
نن سرسبز و شاداب دے او دَ دوئ په وينو ګل و ګلزار

دے۔ دَجهلم، چناب، راوی، بیاس، ستلج، نربدا او
گنګا جمنا دریابونو کښې دَ پښتون وینه لګه دَ او بو بهیدې
او توئې شوې ده۔ دَ پنجاب زمکه ګواه ده چې دَ دې
په هره ذره کښې دَ پښتون وینه جذب او شامل ده
دَ دې دَ تاریخ نه که دَ پښتون شخصیت او وجود ویستې نه
شی نو کورے که دَ پنجاب تاریخ مرتب او بوږشی۔
دې کښې شک نشته چې دَ مُغل حکومت په حمایت او
برکت دَ ایران شیعه نژاد په دې زمکه دَ جاګیرو سرپر
خاوندان شول خو دَ دې ځائې اکثریت دَ سُنی مَسلک
پیروکاران دی چې دَ پښتون پیر و فقیر او
بزرګانِ دین په تبلیغ او کوشش مسلمانان دی۔
پنجاب دَ دوو او همو ژبو سرائیکی او پنجابی مرکز
دے۔ نهٔ معلومیږی چې دَ دې ژبو ماخذ څهٔ دے او کوم
ژاوړ نوم څخه مناسبت لری. آیا دا دَ کول دراوړ ژبې
دی او یا بل قوم څخه تعلق لری. خو دومره پوهیږ و
چې تر سکه دوره دَ پنجابی ژبې هیڅ اهمیّت نهٔ وو.
البته سکه شاهی کښې پنجابی ژبې یو خاص مقام
حاصل کړو او پنجاب یا پنجابي قومیّت څخه پنجابی

ژبې هُم عمومیّت او شُهرت بیا مُوند،

ذاتی خیال لرم چې د پنجاب په سیمه کوم پست و پائمال قوم وُسیدو. د مُسلم حاکمیت په سبب د دوی یو خاص تعداد اسلام قبول کړو او باقی پاتې هندوانو نه کافی سکهان شول. اندازه ده چې د سرائیکی او پنجابی ویونکو تعداد به یو زمانه برابر وو. خو د پنجابی ویونکو سکهانو د اختیار دوا قتدار په برکت به د پنجابۍ اهمیّت او افادیت سېوا او زیات شوې وی او د سِکه لښکر د بربریت او تشدد په وجه به سرائیکی ویونکی مسلمانان نورونو او نورو علاقوته فرار شوی وی او د سکه سرکار په وساطت به د پنجابۍ اثر رسوخ سته کافی نمایات او عام شوې وی.

---

# سِکھ مت

سکھ مت د سنسکرت ژبې لفظ دے چې معنی یې
زده کوونکے او شاګرد ده۔ سکھ ګورو مت د پنځو په بنیاد
ولاړ مذهب دے او "پنځه" هندسه د دې مذهب مقدس
لفظ دے۔ اخری ګورو ګوبند سنګھ د "ک" د نوم
پینځه څیزونه کیس، کړه، کرپان، کنګه او کچهه د سکھ
مذهب ضروری اجزاء اعلان کړل. نو د ګورو ګوبند سنګھ
پینځه مریدان چې بنده بیراګی څخه دکن نه پنجاب
ته راغلل د "پنځه پیارے" په نوم مشهور شول او چې
بنده بیراګی سونی پت ته راورسید و نو "پینځه سوه"
سکھان یې ملګری شول او د غسې وروستو هر سکھ
سپه سالار د پینځه سوه نفریه مشر جوړ شو۔ د مالګزارۍ
نظام هم د "پانځ" په هندسه مخصوص شو او د مرهټه
د چوتھ ر $\frac{1}{4}$ ) په مقابله سکھ د راکھی ر $\frac{1}{5}$ ) طریقه
عام کړه

دَ بنده بیراکی لوټ مار، غارتګرئ او دَ مسلمانانو قتل عام سِکهان کافی مالدار او دولتمند کړل. اوُ دَ دریابِ جهلم نه تر دریابِ جمنا په پنځه زرخیزه دوآبو قابض شول او چې ۱۷۶۱ء کښې دَ پانی پت په مقام مرهټه وُ احمد شاه اَبدالی نه شکست وُخوړو. اوُ دَ هندوستان دَ عظیم سُلطنت دَ قیام خیال ختم شو. نو دَ مُغل په تباه حال حکومت سکهانو دَ سِکه سُلطنت دَ قیام بنیاد پیوند تړل او نوبو نه لیدل شروع کړل. دَ سِکهه مت یو مثل "بهنګی" دَ پنځ دوآب په زړه "لاهور" قابض شول. لاهور دَ دریابِ راوی (Hydroates) او دریابِ بیاس (Biyah = Hyphasis) ترمینځ آباد دی. دَ سکه مذهب مقدس دربار او تالاب امرتسر هُم دې دوآب کښې پروت وو. دَ دې دوآب شرقاً که یوُ اړخ

۱: دَ دریابِ بیاس (دَ مهابهارت = ویپاسه) او ستلج (دَ رِګ وید = ستادرُو)

۲: دَ دریابِ ستلج او جمنا ترمینځ دوه دوآب کښې سکهان قابض وو نو بل پلوُ غرباً هم سکهان

(۱) دَ دریابِ جهلم (بهیت = وید وِتسا = هایډه اسپس) و چناب (دَ رِګ وید = اسیکینی)

ز: دریایي چناب وراوی (دَ ږِک وېلې = پاروسنی) تر
منځ قابض شول. او دغسي سِکهان دَ پینځهٔ
دریابونو په زرخیزه دوآب مالکان او جاګیرداران
شول. دَ هغوی مقدّس ,, پنځ ,, هندسه پوره وه
او دَ ,, پنځ ,, په بناءَ دَ پینځه دریابونو زمکه "پنجاب"
وه. او دغسي دَ ګورو ګوبند سنګهه یا بنده بهراګی
په زمانه دَ سکهه تصوّراتی ریاست عملی شکل
اختیار کړو.

رنجیت سنګهه چي یو اُجړ، جاهل او بې تعلیمه سکهه
سردار وو. او بې دَ پنجابي مورنۍ ژبې په بل هیڅ یوه
ژبه نهٔ پوهېدو، دغه ژبې لوئې قدر و منزلت بیا موند
او دغه عوامی ژبه چي اګاهو په هرنوم وه، اوس دَ پنجاب
په مناسبت ,, پنجابي ,, شوه.

دَ پنجاب په بیمه ور وپېښي معلوم اهم شخصیت دَ سِکهه
فرقې ګورو نانک دے چي لاهور څخه جنوب دَ تلونډي
(ننکانه صاحب شیخوپوره) په مقام یو کم ذات کالو
کهتری کره په ۱۵ اپریل ۱۴۶۹ء پیدا شو. اِبتدائی
تعلیم یې تلونډی کښې سید حسن نومي یو مسلمان
څخه حاصل کړو. او چي لږ لوئې شو نو دَ غربت او افلاس
په وجه خپل ورونبی ,, جے رام ,, له سُلطان پور (جالندهر

دوآب) ته ورسېد و. او د جي رلم په وساطت دولت خان لودي ځخه نوکر شو. خو ځه موده ښېره نه ده چي نوکري يې پرېښوده. او د شپږ دېرش کالو په عمر کښې سلطان پورنه د هردوار، بنارس، آسام، ګجرات، کاټهياوار دکن، کشمير، کابل، ايران، ترکي او عراق په سېل او چکر ووتو او عن چي مکي مديني ته ورسېد و. او چي دغه ځائې ته راواپس شو نو د هغه سوچ او فکر بدل وو. د خپل سماج او معاشرت نه يک لخت جدائي خو مشکل وو نو په دې وجه د بهګتي تحريک په بنياد او پيروي ده هم د توحيد پرستي او وحدانيت تعليم شروع کړو. او د يو عظيم مصلح په رتبه سرفراز شو.

هغه سکه قوم ته د سنګت او پنګت فلسفه پېش کړه. سنګت يعني د ذات پات تميز نه قطع نظر يو ځائي ته راجمع کېدل او د ګورو جي په شان کښې سندې ويئل او د ګوروجي په شکرانه کښې په يو قطار رسنګت) کښېناستل او د عقيدې او رتبې نه ماوراء په شريکه ډوډۍ خوړل. وروستو دغه سنګت پنګت وو چي سکه قوم يې متحد کړو. مقدس او بورا موينه) او مقدس خوراک رکړه پرسد) يو خاص ځائي ته شهرت ورکړو. او دغه مقدس مقام د امرتسر په نوم مشهور شو.

ګورونانک په ۲۲، ستمبر ۱۵۳۹ء کرتارپور کښې مړ شو.

(ii) د ګورونانک د مرګ نه وروستو د هغه د وصیت مطابق د هغه د ضلع فیروزپور یو مرید ګورو انګد (لاهنیه انګار) جانشین شو. د ده لویه کارنامه دا وه چې د ډېرو ژبو په آمېزش یې یوه نوې ژبه ایجاد کړه. او دغه ژبه یې په دیوناګری رسم الخط کښې متعارف کړه چې د ګورمکهي په نوم مشهور ده. هغه د ګورونانک سوانح حیات او تعلیمات په دې ژبه کښې محفوظ کړل. ګوروانګد په ۲۸، مارچ ۱۵۵۲ء مړ شو.

(iii) د ګوروانګد د مرګ نه پس د هغه د امرتسر یو مرید امرداس (۱۵۵۲ء تا ۱۵۷۴ء) جانشین شو

(iv) د امرداس د مرګ نه وروستو د هغه زوم رام داس (جیتها بهائی) څلورم ګورو شو.

اکبر بادشاه ده ته د امرتسر په مقام پېنځه سوه جریبه زمکه بخښش ورکړه. ده دغه زمکه کښې د امرتسر په نوم یو تالاب جوړ کړو. د ګورو رام داس (۱۵۷۴ء تا ۱۵۸۱ء) د مرګ نه وروستو د ګورو منصب وراثتي شو.

(v) د ګورو رام داس د مرګ نه پس د هغه زوئې

ارجن مل (١٥٨١ء تا ١٦٠٦ء) پنځم ګورو نامزد شو.
ده فقیرانه او درویشانه لباس پرېښود او شاهانه
جامې اغوستل یې شروع کړل. ده د سکهانو
د مقدمانو د فیصلو د پاره نو عدالتي قوانین
وضع کړل. ده "ادي ګرنتهه" ترتیب او تدوین کړو.
او د پکښې یې د مشهور بهګتی او مسلمان صوفیانو
احوال درج کړل چې د حضرت بابا فرید پاک
پټن شلوک هم پکښې شامل دي. ګورو
ارجن مل د جهانګیر باد شاه په دې ناراضګی
قتل شو چې هغه د لاهور قلعه د محاصرې په
وخت د هغه د مشر زوئ شهزاده خسرو امداد
کړې وو. د ګورو ارجن مل قتل د سکه مت
په تاریخ کښې یو اهم موړ ثابت شو او د امن
واستی په ځاې یې د مذهبی تعصب
شکل اختیار کړو.

(٧١) د ګورو ارجن مل د قتل نه پس د هغه یوولس کلن
زوئ هرګوبند (١٦٠٦ء تا ١٦٤٥ء) ګورو مقرر
شو. د پلار د قتل د بدل په غرض ده سکه
مذهب ته د یو فوجی تنظیم شکل ورکړو. قلعه
ګانې یې تعمیر کړې او جنګی تیارې یې آغاز کړې.

جهانګیر بادشاه چې د ګورو هرګوبند او د هغه
د مریدانو دې حرکات نه خبر شو نو هغه یې
د ګوالیار قلعه کښې بندیوان کړو. څو دولس[١٢] کاله
ګرفتارۍ نه پس د حضرت میان میرا و وزیر خان په
سفارش بند نه آزاد شو. او د یونیم زرۍ ذات
په منصب مقرر شو. جهانګیر بادشاه د دۀ څخه په
تعلقات ساتل کښې دومره ورستېر شو چې نیل
وفادار منصبدار چندو شاه یې ورحواله کړو
او ګورو هرګوبند د نیل پلار دغه قاتل په قسما قسم
تکلیفونو شهید کړو.

د جهانګیر د وفات نه پس د شاه جهان او
ګورو هرګوبند ترمنځه وران راغله شاه جهان د
دۀ خلاف اووۀ زره مغل لښکر ولېږلو. څو
مغل لښکر شکست وخوړو. او مخلص خان او
غلام رسول شاه غونډې امیران قتل شول
شاه جهان چې د مغل لښکر د شکست نه خبر
شو نو د پنجاب پلوۀ را روان شو. څو ګورو
هرګوبند د بېټسر ځنګلونو ته فرار شو. شاه جهان
د دۀ په تعاقب او سرکوبۍ پاینده خان افغان
مقرر کړو. سکهانو شکست وخوړو. څو

یا بنده خان افغان هم د ده څخه د یوې معرکې د دوران قتل شو.
گورو هرگوبند په ۱۰ مارچ ۱۶۴۵ء د کرتارپور په مقام مړ شو.

(vii) د گورو هرگوبند د مرګ نه پس د هغه پوتمسے هررائي (۱۶۴۵ء تا ۱۶۶۱ء) گورو مقرر شو.

(viii) د هررائي نه وروستو د هغه زوی هرکشن (۱۶۶۱ء تا ۱۶۶۴ء) اتم گورو نامزد شو.

(ix) د هرکشن نه پس تیغ بهادر (۱۶۶۴ء تا ۱۶۷۶ء) نهم گورو مقرر شو. د مغل حکومت خلاف د سرکرمو په عمل او د جرائم پیشه افراد او د مغلیه افواج د بهګوړاؤ او فراریانو په پناهي اورنګ زیب د ده مخالف شو. گرفتار شو. او د اورنګ زیب په حکم په ۱۱ نومبر ۱۶۷۶ء په چاندني چوک دهلي کښې د عام عوام په مخکښې د سید جلال الدین په لاس قتل شو.

(x) د گورو تیغ بهادر په قتل د هغه نهه کلن زوی گوبند سنګه (۱۶۷۶ء تا ۱۷۰۸ء) لسم گورو جانشین شو. هغه ابتدا څخه جوخت د سرمور د غرونو سلسله کښې پناه واخسته او مسلسل شل کاله یې خفیه طور "سکه پنته" جنګ د پاره تیار کړل. هندوانه نوموړي نه د بېلتون په خاطر د

"سنګه" نوم متعارف شو او د "سک" لفظ پنځه څیزونه کس، رو پښتهٔ (بکړه)، کړپان، کنګهه او کچهه د سکهه مذهب ضروري اجزاء شول. او د هندوانو د "رام رام" او د مسلمانانو د "السلام علیکم، وعلیکم السلام" په شان "واهګورو جي کا خالصه" او جواباً "واهګورو کي فتح" الفاظ متعارف شول. خپل پیروکاري د خالصه یعنی پاک و صفا په نوم یاد کړل او د غسې نور د برا قدامات او اصلاحات نه پس یې سکهه مذهب منظم او مستحکم کړو. او د غرنیزو علاقو کاني راجګان یې مطیع او فرمانبردار کړل. په دې مهمات کښې د ساډهوره د رشیعه) سادات یو بزرګ سیّد بدهو شاه د ده ښه امداد او معاونت وکړو[۱]. خو د دې مهمات دوران د ده پنځه پښتانهٔ سرداران ملکری کالې خان بهېکن خان، نجابت خان، حیات خان او ځو هرخان ده نه جدا شول، ځکه چې دوه نیم زره پښتون لښکر ووه[۲].

دا هغه زمانه وه چې اورنګ زیب د دکن په مهمات کښې راګېر وو. د هغهٔ په حکم د لاهور حاکم زبردست خان او د سرهند حاکم شمس الدین خان افغان د ګورو ګوبند سنګهه

---

[۱] تاریخ پنجاب، اقبال صلاح الدین ص ۳۹۸.
[۲] " " کهنیه لحل ص ۵۵

خلاف فوج کشی وکړه. د سکهاو مسلمان ترمنځ ځو جنګونه وشول. ۱۷۰۱ء کښې د انند پور او مکهوال په جنګ کښې سکهانو شکست وخوړو او د ۱۷۰۳ء د چمکور په جنګ کښې د ده دوه زامن اجیت سنګه او جوهر سنګه قتل شول.

ګورو ګوبند سنګه د چمکور قلعه نه د لباس په تبدیلی فرار شو. د ده دوه نور پاتې زامن فتح سنګه او زوراور سنګه د سرهند په مقام ګرفتار شول او ژوندی په دیوال کښې تم مبلی قتل شول.

ګورو ګوبند سنګه د چمکور نه په تېښته بهلول پور ضلع لدهیانه ته راغلو چې د دوه پښتنو غنی خان او نبی خان لاس کښې ونیوو. د انعام په خاطر یې وزیر خان ته روان کړو. خو په ډېر منت زارۍ یې د هغوئ زړونه نرم کړل او د ځان یې پرېښودو.

ګورو ګوبند سنګه چې لدهیانه ته راورسید و نو د لته یې نبل د فارسي استاذ پیر محمد نخه پناه واخسته نو د مغل حکومت واکدارانو ته د ده د پناهې پته ونه لګېده. ګو ګورو ګوبند سنګه ډېر چالاک او مکار وو. هغه د مسلمانانو "حاجی" شکل او روپ اختیار کړو. د غلته آبادو پښتنو پرې دوکه وخوړه او د ده یې هر قسم مالی امداد او تحفظ وکړو۔

---

۱ چادو ناتهه سرکار جلد اول ص ۸۰.

دَ لدهیانه نه بهټنده او بیا فیروزپور ته راغلو. دلته
دَ سکه مذهب عقیدتمند ورته راغونډ شول. خو دَ
سَرهِند مُغل گورنر مُسلسل دَ دهٔ په تلاش وو. دې ځائي
نه مالوه ته فرار شو او دغلته یې دَ سکون ژوند اختیار
کړو. څو څه مُوده پس بېرته دَ سرهِند په لار انند پور ته
راغلو. مُغل څخه یې تعلقات سم شول او دَ هغوی فرمانبردار
شو. اورنګ زیب ځانله دکن ته راوغوښتو. او دَ خبر سکالی
دَ جذبې تحت ښهٔ په شوق دکن ته روان شو. خو لا په لار
وو چې دَ اورنګ زیب دَ وفات خبر را وُرسېد و. بېرته
راستون شو. او چې دَ دهلی په لار واپس وطن ته راتلو
نو شهزاده مُحمّد معظم شاه څخه یې ملاقات وُشو
او دَ هغهٔ مرستیال شو. محمّد معظم شاه بهادرشاه چې
دَ خپل بادشاهت دوران دَ کام بخشی خلاف په مهم وو. نو
گورو گوبند سنګه هُم ورځنه دَ دکن په مهم شامل وو
خو هلته دَ شاهی لښکر نه بېل شو او باقی پاتې ژوند یې
دکن کښې دَ ”ناندېړ“ په مقام په اَمن و سکون تېر کړو.

دَ دکن دَ قیام دوران په ۷ اِ نومبر ۱۷۰۸ع / ۱۱۲۰ھ دَ یو پښتون
جمشید خان دَ لاسه قتل شو. دَ چا پلار چې دهٔ شهید کړے
وو. او هغهٔ توې دَ خپل پلار بدل واخستو.

مؤرخینو دَ دهٔ دَ قتل مختلف قسم روایات تحریر کړي

دَ چاپه نزد ه

"یوُ پښتون تجارت پېشه په دهٔ آسونه خرڅ کړل. او دے دَ رقم په اداښکي ورو ستو انکاری شو. دَ رقم په بار بار طلب دهٔ هغهٔ پښتون شهید کړو. دَ هغهٔ زامن راپا سیدل دَ پلار انتقام یې واخستو او دے یې قتل کړو."

دَ سکهانو دَ بیک مطابق ه

"قاتل دَ سید خان افغان زوئې او دَ پائنده خان افغان نمسے وو. پائنده خان افغان هغه پښتون سردار وو چې دَ شاه جهان په زمانه شپږم گورو هر گوبند څخه دَ جنگ دوران شهید وو."

حقیقت هر څهٔ چې وونو ټول مؤرخین په دې متفق دی چې گورو گوبند سنگهه دَ یوُ پښتون دَ لاسه قتل شو. دَ گورو گوبند سنگهه څلور واړه نارینه اولاد اکا هم مغل څخه په جنګ کښې قتل وو نو په دې اساس هغهٔ دَ مرگ نه وړاندې دَ گورو رُتبې دَ اختتام اعلان وُکړو او آئنده یې گرنتهٔ مستقل ذریعهٔ هدایت کړو. البته دَ دکن په مقام یې خپل یو کم ذات کشمیرے (علاقه راجوړي) مُرید لچهمن دیو (سپر رام دیو) المشهور بنده بیراگی دَ سِکهانو راهنما مقرر کړو.

---

# بنده بیراگی

بنده بیراگی د بهرت پور د ډهلي په لار سونی پت ته "پانچ پیارے" (د ګورو ګوبند سنګه مریدان) ملګرو څخه را ورسید و. دلته پنځه سوه (۵۰۰) سکهان یې ملګري شول. مُغل سرکار چې د بنده بیراګی حرکات اوسرګرمو نه خبر شو نو د ده په تلاش شول. د یوُ معرکې دوران ده د سونی پت مُغل شیخه فوجدار ته شکست ورکړو د ملیر کوټله شیر محمد خان یې مزاحمت وُکړو. نو د هغهٔ سپه سالار ورور خضر خان عین د جنګ دوران قتل شو. بنده بیراګی په دې فتوحات لوئ قوّت بیاموند او څلو ښت زره کم ذات سکهان یې ملګري شول. د سرهند په علاقه یې ډاکې، رهزنی او قتل وغارت جوړ کړو. د سرهند ګورنر وزیر خان یې مقابلې ته راغلو نو شکست یې وُخوړو او قتل شو. ډیر مُغل سنګر هُم تباه وبرباد شو. د سرهند او انباله علاقه

لوټ تالان شوه. زرګونه مسلمانان شهیدان شول.
بوماتونه وران شول او د لودیانه او کرنال ترمینځ
ټوله آبادي وسوزېده.

Most of the buildings were razed to the ground and leveled with the Earth. The leading Sardars ploughed up some of the places with their own hands. No man, not even a bird, except the owl, was to be seen there. ( Ahmad Shah Abdali by Sardar Ganda Singh page:292,302)

ترجمه:

«آبادي ورانې شوې، او زمکې څخه هوارې
شوې، سرکرده سردارانو ځینې ځایونه
په خپلو لاسونو وکښتل او د غلته د کونګیانو
نه بغیر بل انسان یا مارغه په نظر نه راتلو»

د سرهند د کامیابۍ نه وروستو د جمنا په بله غاړه سهارن
پور باندې ورغلل. د روهېلکنډ پښتنو مغل فوجدار
علي حامد خان (علي مهرخان) نه د مزاحمت او
خپلې مرستې پوره یاد ګېرنه ورکړه نو علي حامد خان
وېرې واخستو او دهلي پلو فرار شو. سکهانو د سهارن
پور زیاته نیمه برخه قبضه کړه. سکهان د سهارنپور
جنوب اړخ دېرش میله لرې جلال آباد پلو ورغلل
او د جلال آباد واکمن جلال خان (افغان راورکزی)
ته یې د اطاعت منو دو حکم وکړو خو هغه انکار

شو. هغهٔ خپل ورور نصیر خان او نمسي غلام محمد خان
دَ دوئ په مزاحمت مامور کړل. دوئ سکهان دَ
سهارنپور نه په وېښتو مجبور کړل. خو جولائی ۱۷۱۰ع / ۱۱۲۲ه
کښې اتیا زره (۸۰۰۰۰) سکه لښکر دوباره دَ پښتنو لوئې ښار
جلال آباد (سهارنپور) محاصره کړو. ولې دَ لوئې کوشش
باوجود یې قلعه فتح نهٔ کړه. دَ قلعه دننه محصور پښتانهٔ
چې دَ شلو ورځو په اوږده محاصره تنګ شول. نو دَ قلعه نه
تُوره په لاس رابهر شول او دَ «اللهُ اکبر» په فلک
شګاف نعره په سکهانو داسې یوُ ناساپې ورپرېوتل
چې دَ سترګو په رپ کښې یې زرګونه سکهان قتل کړل.
سکهان هیبت واخستل او میدان نه وُتښتېدل.

دَ بنده بیراګی دَ باغیانه سرګرمونه علاوه دَ
ماجهه باري دوآبه سکهانو هُم یو نړ بر دست "خالصه دل"
تیار او منظم کړو او دغه لښکر په څلور مختلف اړخونو
حمله ور شول. یوه جته په امرتسر او لاهور، دوېمه
ګورداسپور، درېمه دَ خاص لاهور ښار او څلورمه
دَ لاهور دَ قبضې دَ پاره دَ ضرورت په وخت مُتعین
او مقرر شوه. دَ لاهور او دریابې ستلج ترمینځ
ټول کلي لوُټ تالان شول او وُسوزېدل. دَ لاهور
حاکم سید اسلم او دَ هغهٔ مرستیال سردار محمد تقي

موسی بېګ، حاجي سید اسمٰعیل، سید عنایت الله او
مُلا پیر محمد یې په مزاحمت وُدرېدل. سکرنه
ترما ښامه جنګ وُشو. خو فریقین کښې یو هُم شکست
وُنهٔ خوړو. سید اسلم دَ لاهور قلعه کښې محصور شو
او سِکهانو دَ لاهور خوا اُوښا. ټهول کلی تاخت تاراج کړل.
دَ جالندهر دوآب سکهان هُم منظم شول او دَ
شمس الدین افغان خلاف راپورته شول. خو شمس الدین
افغان هُم دَ جهاد اعلان وُکړو او په زرګونو پښتانهٔ
شاه نړلی دَ سِکه خلاف دَ دهٔ ملاتړ شول. شمس الدین خان یوُ
لوئې لښکر څخه سُلطان پور نه دَ سِکهانو خلاف په
جهاد را روان شو او په ۱۲ اکتوبر ۱۷۱۰ یې دوئ څخه
یو زبردست جنګ وُشو. سکهان فرار شول. خو څو ورځې
پس دَ جالندهر دوآب په علاقه دَ دوئ سرګرمۍ بیا
تېزې شوې. شمس الدین خان، بهادرشاه نه اِمداد
طلب کړو. بادشاه اجمیر نه پنجاب پلوُ را روان شو
هغهٔ زین الدین احمد خان پسرِ بهادرخان داؤدزی دَ
سرهند او کوکلتاش خان دَ سونی پت حاکمان مقرر کړل.
دَ جالندهر دوآب صوبیدار شمس الدین خان چې
دَ بهادرشاه دَ سرهند په لور راتګ نه خبر شو. نو
سرهند پلوُ روان شو. دَ هغهٔ ورارهٔ او دَ شاهي هراول

دستي مشر او سردار بایزید خان افغان هم پانی پت نه سرهند ته راورسیږو. د مغل منصبدار محمد امین خان خواهش وو چي د سرهند د قلعه د فتح سهره په خپل سر وتړي. خو د محمد امین خان او د هغه د مغل لښکر را رسیدو نه اګاهو دغه قلعه پښتون سردار شمس الدین خان قبضه کړي وه. د شمس الدین خان په دي رویه محمد امین خان سخت غصه شو او بادشاه د هغه په شرارت شمس الدین خان د جالندهر دوآب صوبیداری نه معزول کړو او دغه علاقه بیي د لکهي ځنګل فوجدار عیسی خان مومند ته حواله کړه کهنیه لعل دا واقعات داسي بیانوي ؛

"جب بادشاہ یلغار کرتا ہوا پنجاب کو آیا۔ تو فیروز خان میواتی و مہابت خان سپہ سالار بمعۂ فوج جرار سکھوں کی سرکوبی کو آگے روانہ کیا گیا۔ بازید خان افغان ساکن قصور فوجدار کو و جموں جو پانی پت میں مقیم تھا۔ اور شمس الدین خان برادرزادہ اُس کا جو دوآبہ جالندھر کا صوبہ تھا۔ دونوں اپنی جمعیت کیساتھ سرہند میں داخل ہوئے۔ اور برباد شدہ رعیت کو بارِ دیگر اُن کے گھروں میں آباد کیا اور عیسیٰ خان مومند زمیندار دوآبہ جالندھر میں مامور ہو کر اس سرزمین کے انتظام میں مصروف ہوا

اس فوج کے آنے سے اجتماع سکھوں کا ٹوٹ گیا۔
بہت سے تو اپنے اپنے گھروں میں جا گھسے[1]

د سرهند د شکست نه پس سکهان د لوهګړه
(مخلص پور) قلعه ته منتقل شول. بهادرشاه د بنده
بهراګی (باندره) په سرکوبه يو بل مغل سپه سالار
رستم دل خان مقرر کړو. د رستم دل خان ماتحت
يو پښتون سردار کم وار خان او مغل ښکر د قلعه محاصره
وکړه. په ۱۰ دسمبر ۱۷۱۰ء ۱۹ شوال ۱۱۲۲ھ د لوهګړه
په مقام زبردست جنګ وشو. سکهانو شکست وخوړو
په زرګونو قتل شول او ډیر ګرفتار شول. خو بنده بهراګی
د مغل سپه سالار منعم خان په کوتاهي او غفلت د
شپې په تیاره کښې ووتو. او دغسې د بهادرشاه
فوج کشی نه سکهان خپل اصلي وطن ماجهه ته محدود
شول. رستم دل خان مغل سپه سالار د کم وار خان افغان
کامیابی بهادرشاه ته خپله کارنامه ظاهر کړه او په ۱۱ دسمبر
۱۷۱۰ء ۲۰ شوال ۱۱۲۲ھ یې د لوټ مال بې شمار سازوسامان
او سکه اسپوان د بهادرشاه خدمت کښې پیش کړل او
بادشاه نه یې قسما قسم مراعات حاصل کړل.

---

[1] تاریخ پنجاب ص۷۱

په ۴ جون ۱۷۱۱ء د جون فوځ د ارباب یزید خان افغان او بنده بیراګي تر مینځ د بهرام پور په مقام یو جنګ وشو. دغه جنګ کښې بایزید خان او د هغه ځوئ شمس الدین خان شهیدان شول. او بنده بیراګي خپل ختم او ورک حیثیت تر څه حده دوباره قایم کړو.

د سکهانو دغه جعلي ګورو بنده بیراګي په ۷ دسمبر ۱۷۱۵ء (۱۱۲۷ھ) د ګورداسپور د محاصرې دوران خپل یولوئي لښکر څخه ګرفتار شو. او دا تهول ګرفتار سکهان د صوبیدار لاهور عبد الصمد خان په لور را روان کړے شول او د لاهور په بازار کښې پاپند سلاسل ګرځولے شول. سید محمد لطیف لیکي. ؎

"بایزید خان افغان صوبہ دار سرہند جسے نماز پڑھنے کی حالت میں ایک سکھ "بازسنگھ" نام نے مارا تھا اُس کی ماں بھی یوم تشہیر کے روز اپنے کوٹھے پر غم و غصہ میں کھڑی تھی جونہی یہ جماعت سکھوں کی نکلی۔ اُس نے لوگوں سے اپنے پسر کے قاتل کو پوچھا۔ لوگوں نے بتایا کہ بازسنگھ وہ چلا جاتا ہے۔ اُس نے کوٹھے ہی پر سے ایک پتھر ایسا تان کر مارا کہ بازسنگھ کی روح پرواز کر گئی۔" ؎

بنده بیراګي د بادشاه په حکم دهلي کښې په ۱۹ جون ۱۷۱۶ء / ۱۱۲۸ھ قتل شو.

---

؎ تاریخ پنجاب از سید محمد لطیف ص ۵۳ م

# یوه جائزه

دَ پښتو پرکاش مصنف لیکی :
" مال دولت او جاه و حشمت گوروناکه نه
اتلسم میله لرې وو. گوروانګد نه نهم میله
دَ گورو امرداس دَ گور دروازې ته او دَ گورو
رامداس پښتو ته راورسېده. گورو ارجن راوړلو
کړو او پخپله یې کړو "
دَ گورو ارجن پې ۱۶۰۶ ز یې دولت گورو هرگوبند پکار
راوست - یو منظم فوج یې تیار کړو. دَ شاه جهان مُغل
لښکرې څخه وُ جنګېده و گرفتار شو. خو دَ حضرت میان میرٌ
په سفارش خلاص شو. دَ گورو هر رایې او گورو
هرکشن سیاسی جد وجهد څخه خاص اهمیت نه لرو.
البته اورنګ زیب چې گورو تیغ بهادر قتل کړو - نو

---

له تاریخ پنجاب - اقبال صلاح الدین ص۲۸۹

سکهانو د انتقام یو مُسلح جد وجهد شروع کړو. گورو
گوبند سنګه د دغو د غرونو په پناه کاکښې په فوجی
تربیت آراسته کړل - او یو داسې جنګجو "خالصه دل" یې
تیار کړو چې "بنده بیراګی" دغه فوجی قوّت د اِنسانیت
په قتلِ عام استعمال کړو او دوه مره زیات مسلمانان
یې شهیدان کړل. چې د چنګیز خان دوریې بیا تازه کړو.
د دهلی او لاهور ترمینځ یې د دهشت او بربریت هغه مظاهره
وُکړه. چې د هند په سیمه تر دغه وخت نه وه شوې - د
فرخ سیر په زمانه حکومت عبدالصمد خان صوبیدار لاهور
بنده بیراګی گرفتار کړو - او د بادشاه په حکم ۱۷۱۶ء کښې قتل
شو. خو د بنده بیراګی د قتل و غارت، رهزنی، ډاکه ماری او
لوټ تالان نتیجه دا شوه چې سکهان مال دار شول او دغه
دولتمند سکهانو خپل نوکران او غلامان وُساتل. او
د بنده بیراګی په قتل ځه زمانه نېره نه وه چې د
۱۷۳۰ء خواؤشا دوی خپل ورکوټی ورکوټی ریاستونه
قائم کړل. تازه کښې یو بل ځنه وُبنګیدل خو آخر کار په
دوؤ غټو برخو بڼه هر دل ربڼه هر ـ مشران - دل - فوج) او
تارونه دل ( د کشرانو فوج ) کښې وېشې شول - د
مشرانو کار تنظیمونه قائمول. تاڼې جوړول او دُښمن
ته سزا ورکول وو - د کشرانو کار جنګ او د امرتسر حفاظت کوئل.

وو۔ بیا دغه دوه ډل په دولس مثل کښې ولېش شول یعنی
دولس[۱۲] خاندان، مثل یا ډلې جوړ راووتې

(۱) بهنګی (امرتسر-لاهور) (۲) رام ګړهیون (لاهور)
(۳) کهنیر (لاهور) (۴) نکیون (لاهور) (۵) آهلو وال
(لاهور) (۶) بوړیا ډلي (لاهور) (۷) نشان واله (انباله)
(۸) فیض الله پوړ (جالندهر دوآب) (۹) کروړی
(جالندهر دوآب) (۱۰) شهید بهنګی (پټیاله) (۱۱) پهلکی
(پټیاله) (۱۲) سرچک (ګوجرانواله)

د نادرشاه په حمله ۱۷۳۹ء د مغل سلطنت زیات
کمزور شو او لکه د شیعه مغل منصبدارانو سکه سردارانو
هم دې زوال پذیر حالت نه پوره پوره فائده پورته
کړه. احمدشاه ابدالي د جهاد په ذریعه ۱۷۶۱ء کښې د
پاني پت په میدان د دکن د مرهټه هندوانو قوت
ټکړې ټکړې کړو. او د پنجاب په زمکه یې هم
د کم ذات هندو نوې مذهبي روپ "سکه" د باؤ
کړو. خو د سکه قوم د ګورو ګوبند سنګه د جنګ طریقهٔ
کارپکار راغلو یعنی احمدشاه ابدالي چې به د پنجاب
میدان ته راکوز شو نو دوئ به غرونو کښې پټ شول
خو د هغهٔ په واپسۍ به بیا رابهر شول او قتل و غارت
به یې شروع کړو. تیمورشاه او زمان شاه

ښو وار د سکهـ خلاف پنجاب ته راغلل. خو دوئی دوا ړ
د پنجاب په سیمه امن وامان قایم نهٔ کړے شو. اخر
کار د سکهـ یوه ډله بهنګی والا د لاهور په قبضه کامیاب
شول او ۱۷۹۹ء پورې دوئی د لاهور حاکمان وو. چې
هُم په دغه کال د سکر چکیه ډلې مشر سردار رنجیت
سنګهـ د کهنیه ډلې په امداد لاهور قبضه کړو او د
بهنګیانو واک اختیار ګجرات ته محدود شو چې
وروستو رنجیت سنګهـ دغلته هُم د دوئی اقتدار ختم کړو
وائی چې رنجیت سنګهـ ته د لاهور په قبضه کښې
د باغبان پورې میاں کانو د بهنګی سردارانو خلاف
مرسته وُکړه او د دې ناندان میاں محمد شفیع
میاں شاه دین او د مُسلم لیګ شهرت یافته بیګې
بیګم شهنواز وروستو په لاهور د انګریز د حکومت
په قیام کښې هُم ډېر امداد وکړو.

---

له احمد شاه ابدالی از ګنډا سنګهـ ص ۲۹۸

# رنجیت سِنګه

د اورنګزیب په زمانهٔ حکومت د ګوجرانواله په سکرچک نومې کلی کښې یو کم ذات هِند و "بدهو مل" چې د سِکهانو د کامیابۍ نه خبر شو نو هغهٔ هُم سِکه مذهب قبول کړو او د مجرمانه ذهنیت مالک "بدهو سنګه" په ډاکو او رهزنۍ خپل خاص نوم پېدا کړو د دهٔ د مرګ نه وروستو د دهٔ زوئې نوده سنګه هُم زبردست رهزن او ډاکه مار وو. خو ۱۷۵۸ء کښې د فیض الله پور د کپور سنګه په امداد د روهیلکنډ د حملې دوران قتل شو.

د نوده سنګه په وفات د دهٔ زوئې چرت سنګه جانشین شو. دهٔ د دغه وخت دوه مشهور ډلو بهنګی او آلووال بالمقابل خپل یو سکرچک مثل یا ډله تیاره کړه او په ډاکو او رهزنۍ یې زبردست شهرت

حاصل کړو. په ایمن آباد یې حمله وکړه او کافي
اسلحه یې قبضه کړه. د احمد شاه ابدالي حاکم لاهور
خواجه عبید الله (عبید خان. عابد خان) د ده خلاف په
گوجرانواله فوج کشي وکړه خو د دغه فوج کشۍ څخه
خاص مقصد نه سره نه شو. او د چړت سنگه فوجي طاقت
په اضافه شو. ده وزیرآباد، پنډ دادن خان، سیالکوټ
فتح کړل او عن چې د رهتاس (جهلم) قلعه یې هم د احمد شاه
ابدالي فوجدار نورالدین افغان نه قبضه کړه د بهنگي
دلې سکهان چې د ده د فتوحاتو نه خبر شول نو د ده
په مخالفت راپاسېدل او د جموں د حکمران رنجیت دیو
څخه ۱۷۷۱ء کښې د یو جنګ دوران قتل شو. د ده په
قتل د ده لسلی کلن زوئ مهان سنگه جانشین شو
دے چې لر لوئ شو نو د رهتاس قلعه یې سر دوباره
نورالدین افغان نه قبضه کړه.

۱۷۸۰ء کښې یې د پښتون حاکم پیر محمد خان
خلاف په رسول نگر حمله وکړه پیر محمد خان افغان
یې مزاحمت وکړو خو شکست یې وخوړو او قلعه
کښې محصور شو. مهان سنگه ورڅخه د ،، کړنه ،، په
پای د صلحې شرائط فیصله کړل خو هغه چې څنگه د
قلعه نه رابهر شو نو مهان سنگه گرفتار کړو او بیا یې

Created with Scanner Pro

شهید کړو. رسول نګر د مهان سنګه په قبضه شو او
د رسول نګر نوم یې په "رام نګر" بدل کړو.
مهان سنګه د پښتنو په یوه بله خاص علاقه "علی پور"
هم قابض شو او د دغه ځائې نوم یې "اکال ګړه"
کښېښو دو.

مهان سنګه د خپل پلار چړت سنګه د انتقام په
غرض په جموں حمله وکړه. د جموں راجه برج دیو
یې مقابله وکړه خو شکست یې وخوړو او مهان سنګه
په جموں قابض شو.

مهان سنګه ۱۷۹۲ء کښې د دریائې چناب نه واوړید
او د بهنګی مثل په ګجرات یې حمله وکړه. خو د
محاصرې دوران قتل شو.

د مهان سنګه د قتل نه وروستو د هغه د چیچک
په وبا تپلې بد شکل او د خرابو دانو د مرض په
سبب په یو سترګه روند دولس کلن زوئې رنجیت
سنګه (پیدائش ۱۷۸۰ء) جانشین شو.

۱۷۹۶ء کښې د شاه زمان په پنجاب د حملې دوران
لکه د نورو سکهانو دے هم ځنګل ته وتښتید و
او دغلته پټ شو. ۱۷۹۸ء کښې په لاهور د دویم
وار قبضې دوران هم رنجیت سنګه لکه د نورو سکهانو

ځنګل ته فرار شو او نور نو کښې پټ شو. شاه زمان د
مرزا محمود په هرات د حملې په خبر ډېر په تېزۍ کابل ته
روان وو چې د دریائی جناب ته راورسېد و نو دغلته
د دریاب سیلاب په وجه د دوه توپونو ډوبې شوې
نو د وخت د کمي په سبب هغه ته د دغه توپونو راوښکل
مشکل وو او دغه کار یې بلې موقعې ته پرېښودو.
رنجیت سنګه او د هغه سکه ملګري چې خپل کمین ګاه ته
راووتل. نو د شاه زمان د توپو ډوبېدو په واقعه
خبر شول. هغه د غه توپې د دریاب نه را بهر کړې او
شاه زمان ته یې ولېږلې. شاه زمان د رنجیت سنګه
په دې کار ډېر خوشحال شو. چې هغه یې د لاهور
حاکم مقرر کړو. خو رنجیت سنګه د پاره د لاهور حاکمیت
ته آسان کار نه وو. ځکه چې لاهور او نوره پېوست علاقه
د تیمورشاه درانی راسې علاقه د درې بهنګی سردارانو
ګوجرسنګه، لهنه سنګه او سوبهه سنګه تحت وه او دې
وار هم چې شاه زمان کابل ته واپس شو. نو د دغه درې
سکه سردارانو زامن صاحب سنګه ولد ګوجر سنګه
جیت سنګه ولد لهنه سنګه او مهر سنګه ولد سوبهه سنګه
په لاهور قابض شول.

رنجیت سنګه پنځو یشت زره سکه لښکر څخه ګوجرانوالا

ته لاهور پلو روان شو. د لاهور مسلمانانو یې د شاه زمان
د فرمان په وجه جاني او مالي امداد وُکړو او د مسلمان
رعایا خصوصًا د مهر محکم الدین په امداد او کومک جولائي
۱۷۹۹ء کښې په لاهور قابض شو او بهنگي سرداران فرار
شول. د لاهور قبضه د رنجیت سنگهه د آئنده فتوحاتو
پیش خیمه ثابت شوه. ۱۸۰۱ء کښې یې سیالکوټ قبضه
کړو او د جموں راجه یې په اطاعت منودو مجبور کړو
د گجرات بهنگي سرداریې هُم اطاعت وُمنوده او دې نه
پس یې اکال گڑهه هُم خپل سلطنت کښې شامل کړو.
اپریل ۱۸۰۱ء کښې رنجیت سنگهه ځان د پنجاب مهاراجه
اعلان کړو.

اپریل ۱۸۰۱ء کښې رنجیت سنگهه په قصور حمله وُکړه
د پنجاب په سیمه قصور د پښتنو یو مضبوط کړه وو. د
قصور پښتون سردار نظام الدین خان یې زبردست
مزاحمت وُکړو. خو شکست یې وُخوړو او په اطاعت
منودو مجبور شو. د نظام الدین افغان په دې حرکت د
قصور پښتانه خفه شول او د هغهٔ خلاف راپورته
شول. نظام الدین افغان یې قتل کړو او د هغهٔ زوئې
قطب الدین افغان یې د قصور حکمران مقرر کړو
د قطب الدین افغان او رنجیت سنگهه ترمینځ فروري ۱۸۰۷ء

کښې جنګ وشو. قطب الدين خان شکست وخوړو او
په صلح مجبور شو. رنجيت سنګه پښتون رياست "قصور"
خپل سلطنت کښې شامل کړو او قطب الدين افغان د
دريائې ستلج بله غاړه ممدوټ علاقه کښې پناه واخسته
او عارضي طور د غلته مېشته شو. د اوسني قصور په
علاقه د شهزادګانو کورنۍ خپل تعلق حسين خان
لوښکي څخه ښائي.

د قصور د محاصرې او فتحې دوران د رنجيت سنګه
بې سره سکه لښکر د زبردست بربريت، درندګۍ او قتل عام
مظاهره وکړه. زرګونه پښتانه مسلمانان شهيدان
شول. د هغوئې ننګ ناموس لوټ او برباد شو او د
قصور ټوله آبادي د اور خوراک شوه. د قصور په
واقعه کنهيه لعل ليکي:

"لوگوں کے بدن کے کپڑوں تک سکھوں نے اُتار لئے
عورتیں ننگے سر اور ننگے بدن، ستر سے بے ستر ہو کر جا بجا
اپنے آپ کو چھپاتی پھرتی تھیں. مگر کوئی جگہ امن کی
نہیں ملتی تھی. بہت سی اشراف عورتیں جنہوں نے
کبھی بیگانہ مرد کی صورت نہیں دیکھی تھی اپنے ہاتھ
سے پھانسی لے کر مر گئیں. کئی چاہات میں کود پڑیں.
...... بہت سی جوان عورتیں، لڑکیاں اور لڑکے سکھوں

نے شہر سے پکڑ لئے اور غلام بنانے کے ارادہ پر پاس
رکھ لئے "[1]

"افغان رئیس کا کل مال و منال، ہاتھی، گھوڑے
زیوات، جواہرات، ملبوسات، مکلف فرش فروش خیمہ
وغیرہ لاکھوں روپیہ کا مال مہاراجہ کے ہاتھ لگا"[2]

رنجیت سنګه د قصور د پښتنو خلاف په کامیابۍ دومره نازه
ورشوچې مارچ ۱۸۰۷ء کښې یې د جهنګ چینوټ په پښتون
سردار احمد خان سیال حمله وکړه. احمد خان سیال یې
زبر دست مزاحمت وکړو خو د خپل هندو رعیت په
سازش یې شکست وخوړو او په صلح مجبور شو.

رنجیت سنګه د جهنګ چینوټ د فتح جوخت وروستو
۱۸۰۷ء کښې د ملتان سدوزي پښتون حاکم نواب مظفرخان
خلاف فوج کشي وکړه تو د نواب بهاول خان والي بهاولپور
په ذریعه صلح وشوه او رنجیت سنګه د خراج په وصولو
راضي شو.

رنجیت سنګه په یکم فروري ۱۸۱۰ء جعفرخان بلوچ نه
خوشاب او فتح خان بلوچ نه په ۱۰ فروري ۱۸۱۰ء ساهیوال

---

[1] تاریخ پنجاب ص ۱۸۳ -

[2] تاریخ پنجاب، سید محمد لطیف ص ۱۱۳

قبضه کړو.

په ۲۵ فروری ۱۸۱۰ء ئې دوباره په ملتان حمله وکړه. د سکه لښکرا و نواب مظفرخان ترمېنځ جنګ وشو خو آخېرکار نواب مظفرخان افغان د خراج او تاوان جنګ په ادا ئېګی صلاح شو.

۱۸۱۶ء کښې رنجیت سنګه بیا په ملتان حمله وکړه او د خواؤ شا ټوله علاقه یې تاخت وتاراج کړه. عن چې اپریل ۱۸۱۶ء کښې منکېره ته را ورسېده و. محمود کوټ لیّه، بهکرئې لوټ تالان کړل او د منکېره نواب شیرمحمد خان (پسرِ نواب احمد خان) نه ئې خراج وصول کړو.

۱۸۱۷ء کښې د شهزاده کهړک سنګه تحت په څلورم ځل سکه لښکر په ملتان حمله وکړه. اویا کلن نواب مظفرخان پسرِ شجاع خان صفدر جنګ دې وارنجه اراده وکړه چې اوس سکه سرکار څخه سم برابر جنګ لازمی دے هغه لکه د یونو پښتنو د سکه په مقابله کښې میدانِ جنګ ته ورودانګل او زرګونو پښتنو څخه یې په ۲ جون ۱۸۱۸ء / ۱۲۳۳ھ جامِ شهادت نوش کړو. د هغه درې زامن شهنواز خان شهباز خان او حق نواز خان هم شهیدان شول.

" نواب مظفر خان اور اُس کے بیٹوں بھتیجوں نے تیغ زنی کے تاریخی مظاہرے کئے۔ لیکن ایک ایک کرکے

سب مارے گئے. نواب کے قتل ہونے ہی اس کی فوج
ہمت ہار گئی اور سکھوں نے قلعہ پر قبضہ کرلیا"

رنجیت سنگھ ملتان، خان گڑھ، مظفرگڑھ، او
شجاع آباد وغیره د نواب مظفرخان ټوله علاقه خپل سلطنت
کښې شامل کړه.

شجاع و زاین شجاع و حاجی ... امیر ملتان زهے مظفر
بروز میدان به تیغ و بازو ... چه حمله آورد چوں غضنفر
چوں سرخ رو شد به سوئے جنت ... بگفت رضوان " بیا مظفر"

د نواب مظفرخان سره وزی دوه زامن نواب
سرفرازخان او نواب ذوالفقارخان ژوندی پاتې شول
سکهانو گرفتار لاهور ته بوتلل. د نواب سرفرازخان په ایما د دوی
یو ذاتی منشی شیر محمد نادر د "زبدة الاخبار" په نوم یو کتاب
تحریر کړو چې د دې پښتنون کورنۍ مفصل حالات په دغه
تاریخ کښې درج دي.

"۱۸۲۱ء کښې سیون مل د سکه سلطنت د ملتان گورنر
مقرر شو. ۱۸۴۴ء کښې د سیون مل د مرګ نه پس د هغه
زوئی دیوان مول راج ۱۸۴۴ء تا ۱۸۴۸ء د ملتان گورنر وو. هغه
د انگریزانو خلاف ۱۸۴۸ء کښې زبر دست جنګونه وکړل خو شکست
یې وخوړو او آخرکار په ۲ جنوری ۱۸۴۹ء انگریزو سرکار
ملتان په خپل سلطنت کښې شامل کړو. د سکه سلطنت په

زد دَ مُلتان پښتنو قبیلو خاکوانی ، بادوزی ، سدوزی ترین او بابر قبائل دَ نواب سرفراز خان بن مظفرخان په وېنا او پېغام دا شکر پر حکومت په مرسته ودر بدل دَ دي قبائل غلام مصطفیٰ خان خاکوانی ، غلام سرور خان خاکوانی ، صادق محمد خان بادوزی ، فوجدار خان علی زی ، غلام قادر خان علی زی دا نکر پر سرکار په زمانه کښې په اهم عهدو مامور وو"

Imperial Rule in Punjab by J. Royal Roseberry
Page 100

شهزاده کهرک سنګه دَ مُلتان دَ فتح نه وروستو ستمبر ۱۸۱۸ء کښې په یلغار او تاخت وتاراج ترمنکیره را ورسید و. شیر محمد خان نه یې خراج وصول کړو او لاهور ته ستون شو- ۱۸۲۱ء کښې منکیره سکه سلطنت کښې شامل شوه دغسې ۱۸۲۷ء کښې دَ نواب شهنواز خان پسر شیر محمد خان خلاف کاروائی وُشوه. سکهان په ډېره اسمٰعیل خان قابض شول او بنوں هُم تاخت وتاراج شو.

دَ رنجیت سنګه په مُلتان متواتر حملې دَ مِلتان او مظفرګړه تاخت وباخت او دَ بې سره سکه سپاهی لُوټ تالان او قتلان

---

له دَ نواب مظفرخان په نوم آباد ښار مظفرګړه او
دَ شجاع خان په نوم آباد شجاع آباد-

د نواب مظفرخان افغان مسلمان کارنده، کاشتکار او رعیت د
محفوظ مقامات او پناه ګاه په تلاش مجبور رشول. د دوی
یو لوییې اکثریت د ډیره اسمٰعیل خان په علاقه آباد شو.
او پښتنو د اسلام او مسلمان په ناطه او رشته د دوی
هر قسم امداد او کومک خپله دینی فریضه وګڼله -
د غه زمانه د غلته د شاه افغانستان نمائنده دیوان مالک رای
وو. نو ۱۸۲۱ء کښې سکه سنګی په دریم ځل په منکیره
حمله وکړه او د منکیره د قبضې نه وروستو دریائې
سنده نه راپورې وتل او د ډیره اسماعیل خان یې قبضه
کړو. دیوان مالک رای معزول شو او د منکیره نواب
شیر محمد خان د ډیره اسماعیل حاکم مقرر شو او منکیره
رکه مان کورلار) سکه سلطنت کښې شامل شوه -

تاسو وګورئ چې نن د ډیره اسمٰعیل خان په علاقه
کښې شمیر سرائیکی باشندګان آباد دی. څوک چې د
سکه قوم د بربریت، درندګۍ او بهیمیت نه دلته په هجرت
او پناه اخیستو مجبور شول. د پښتنو کمال مهمانداری او
صفات پښتنولی وګورئ چې د نواب مظفرخان
افغان او نورو پښتنو حاکمیت که هر څو د ملتان او
مظفرګړه په علاقه ختم شو. خو د اسلامی جوش و جذبې
تحت نن هم سرائیکیان او پښتانه یکه د دوئو وروڼو

یاڼه بیو علاقه اوسی اؤ د بیؤبل په غم او درد شریک دی. د ۱۸۹۱ء، ۱۹۰۱ء او ۱۹۱۱ء د مردم شماری مطابق د غلته بسېدونو نه علاوه اړوړه، اعوان، بلوچ، بهاټیه، برهمن، ککهر، ګکهړ، کهوکهر، جاټ، کشمیری، کهتری، مغل، پراچه، قریشي، راجپوت، سیّد او شیخ وغیره نسلونه آباد دي. د ډیره اسمٰعیل خان ښار ۱۴۸۸ء / ۸۹۳ھ کښې جام اسمٰعیل خان هوت آباد کړے دے چې د ملتان د حاکم سلطان حسین لنګاه جاګیردار او د منکېره او ډیره اسماعیل خان نواب وحاکم وو.

رنجیت سنګه د دریائې سنده او دریائې ستلج ترمینځ آباد پښتون مسلمان ریاستونه بېخي ختم او نیست ونابود کړل. په زرګونو پښتانه مسلمانان شهیدان شول او د هغوئ جاګیرونه او ریاستونه سکه سلطنت کښې شامل شول. د پنجاب په سیمه بهاولپور یوازې مالدار مسلمان ریاست وو. چې بهاول خان اؤ د هغهٔ زوئې صادق خان د رنجیت سنګه د سکه خالصه دل د دهشت ګردی نه هروار د ډېر لوئې خراج په ادائیګی محفوظ وساته. او چې اګست ۱۸۳۲ء کښې د سنده په سیمه انګریز سفیر الیګزانډر برنس د رنجیت سنګه ملاقات ته راروان وو نو د بهاولپور نواب انګریز سرکار څخه د دوستۍ او الحاق عهد و پیمان وکړو او رنجیت سنګه نه یې د ویرا ر ته او نفرت اظهار وکړو

د رنجیت سنګه د بربریت او درندګۍ نتیجه دا شوه
چې د دریاځ ستلج په بله غاړه پراته ټپ سکه
ریاستونه مجبور شول چې انګریز سرکار سره د دوستۍ او الحاق
عهد و پیمان وکړي. د دریاځ جمنا او ستلج ترمنځ د
فیروزپور، جنیډ، کیتهل، فرید کوټ، نرائن ګړه
نابهه، ملیر کوټله او پټیاله وغیره ریاستونو حاکمانو
انګریز سرکار سره د شمولیت، اطاعت او الحاق اعلان
او درخواست وکړو. انګریز سرکار رنجیت سنګه ددې
ټول واقعات نه خبر کړو. رنجیت سنګه دې ته بالکل تیار
نه وو. چې انګریز سرکار سره دریاځ ستلج حَدِّ
فاصل مقرر کړي ځکه چې د سکه دولس مثلونو یا ډلونه
شپږ ډلې د دریاځ ستلج په بله غاړه تر دهلی قابض
وې. او دغسې د هغه د عظیم سکه سلطنت او د پنجاب
په نوم د یو ریاست د قیام په منصوبه کښې ډیر لویې
فرق راتلو. خو رنجیت سنګه د انګریز طاقت او قوت نه په
خوف او ویره وو او د دې ویرې په سبب د سندهسیمه[1]
د هغه د بربریت نه محفوظ پاتې شوه. او انګریز سرکار

---

[1] د سندهه په سیمه د حیدرآباد، بنار بنیاد د احمد شاه ابدالي والسرایې
غلام شاه خان ایښودے وو.

بې دَ څه مزاحمت ۱۸۳۷ء کښې قبضه کړه. دَ مهاراجه رنجيت سنګه
او مسټر مټکاف ترمينځ په ۲۵ اپريل ۱۸۰۹ء دَ حَدِ فاصل
متعلق يوه معاهده لاسليک شوه او دغسې دَ انګرېز سرکار
پولوې سرحد دَ کرنل ډيوډ کرلونی تحت دَ درياب جمنا دَ
غاړې نه دَ درياب ستلج غاړې پتهيالم ته منتقل شو
او دَ لدهيانه په مقام يوه چاؤنړۍ تعمير شوه.

وائي چې انګرېز سفير مسټر مټکاف څخه دهلی نه
راته سوه شيعه مسلمان سپاهيان امرتسر ته راغلل. هغوئ
په لښکر محرّم دَ تعزيې او ذوالجناح جلوس تيار کړو او ډېر
په شان وشوکت دَ امرتسر ښار نه په جلوس راووتل.
سکهانو چې دا حالت وليد و نو دَ هغوئ خلاف دَ "اکال اکال"
په آواز راغونډ شول. دَ دواړو ډلو ترمينځ معرکه وشوه
ډېر کسان قتل شول. خو دَ رنجيت سنګه په مداخلت امن قايم
شو. او مهاراجه انګرېز سفير نه دَ معافۍ خواستګار شو.

دَ رائې بهادر ديوان چند د بهرائې مطابق:
"رنجيت سنګه خپل سلطنت کښې ملتان او کشمير
شامل کړل. وليکن دا مکار چالاک حکمران ستلج
نه اخوا دَ هند انګرېز سرکار څخه هيڅ قسم
کواخ نه تيارنه وو. او ځان ئې دَ هغوئ خاص

مخلص مرستیال حساب وو"

مهاراجه رنجیت سنگه په ۲۷ جون ۱۸۳۹ء مړ شو د هغهٔ د وصیّت مطابق د هغهٔ مشر ولیعهد نا وئ کهړک سنگه مهاراجه او سردار دهیان سنگه وزیر اعظم اعلان شو. خو مهاراجه کهړک سنگه د خپل پلار د وصیّت برعکس خپل یو بنهٔ دوست چیت سنگه وزیرِ اعظم مقرر کړو. د کهړک سنگه او ټهټ د خالصه دربار خاص ا فسران لکه سندهیانواله سرداران، دهیان سنگه، گلاب سنگه او سچیت سنگه خفه او ناراضی شول. او د کهړک سنگه خلاف یې سازشونه شروع کړل. کهړک سنگه بیمار او رنځور وو. نو په دې وجه سِندهیانواله سرداران د کهړک سنگه معزولی او د هغهٔ د اتلس کلن نا وئ نونهال سنگه په ۸ اکتوبر ۱۸۳۹ء د بادشاهۍ په اعلان کامیاب شول. سردار دهیان سنگه وزیر اعظم مقرر شو او د کهړک سنگه دوست او وزیر اعظم چیت سنگه په ۱۸ اکتوبر ۱۸۳۹ء قتل شو.

۵ نومبر ۱۸۴۰ء ووچې کهړک سنگه مړ شو. نونهال سنگه د هغهٔ کریا کرم (رسمِ تجهیز و تکفین) سبهٔ شان شوکت خخه وُکړو. خو هُم د غه ورځ چې کریا کرم نه والپس راتلو

---

The Evolution of N.W.F.P - P.30

نو د بیوزو او بوسیده کور دیوال په دغه را پریوتو.
او دے هم په دغه ورځ مړ شو.

سردار دهیان سنګه وزیر اعظم سکه سلطنت د
کهړک سنګه نبځه او د نونهال سنګه مور رانی چاند کور د
تخت نشین کړه. نو د خالصه دربار سرداران په دې
متفق شول چې د رنجیت سنګه دویم زوئ مهاراجه
مقرر کړی. هغوئ پټیاله نه شهزاده شیر سنګه
را وغوښتو او په ۱۸ جنوری ۱۸۴۱ء شیر سنګه د سکه
سلطنت مهاراجه اعلان شو او رانی چاند کور د یو
لوئی جاګیر په بخښش امورِ سلطنت نه دستبردار شو.

د سلطنت په دغه عهد کې مسلسل تبدیلیو اثر
په سکه لښکرو زخت زیات پریوت. د سکه بې سره
لښکر کښې د بغاوت رجحاناتو تقویت بیا موندلو او سکه
فوج شاهي شروع شوه خپله من مانۍ یې آغاز کړه
خپل یورپي افسران یې قتل کړل خو چې د پښتنو قاتل
او د پیښور ګورنر اویطوبیله ډیره په ګرانه جلال آباد
ته فرار شو. د مال دولت په حرص او لالچ ډیر سرداران
قتل شول. ملک کښې افراتفری شوه او اخر کار په
۱۵ ستمبر ۱۸۴۳ء مهاراجه شیر سنګه او وزیر اعظم
دهیان سنګه هم قتل شول.

د سردار دهیان سنګه په قتل د هغه زوی هیرا سنګه راپاسید. و. لاهور یې محاصره کړو. د فوج باغی سرداران لهنه سنګه او اجیت سنګه یې قتل کړل او په ۱۸ ستمبر ۱۸۴۳ یې د رنجیت سنګه شپږ کلن زوی دلیپ سنګه مهاراجه اعلان کړو او بچله وزیر اعظم شو. خو هیرا سنګه ولد دهیان سنګه د خپل فوج په حمایت ظلم وتشدد آغاز کړو او د سردار ګلاب سنګه په وساطت یې د رنجیت سنګه یو بل زوی کشمیرا سنګه قتل کړو. د هیرا سنګه په دې ناروا حرکات عوام بدظن او متنفر شول او د ده خلاف راپورته شول. هیرا سنګه چې حالات خپل خلاف ولیدل. نو مال و دولت یې راغونډ کړو او فرار شو. خو د مهاراجه دلیپ سنګه ماما جواهر سنګه یې تعاقب وکړو هغه یې ګرفتار کړو او په ۲۱ ستمبر ۱۸۴۴ یې قتل کړو. او جواهر سنګه خپل ځان وزیر اعظم اعلان کړو. هغه د راجه ګلاب سنګه ناظم کشمیر خلاف فوج کشی وکړه. خو ګلاب سنګه معافی وغوښته او اطاعت یې قبول کړو ګلاب سنګه د کشمیر نظامت نه معزول شو او شیخ امام الدین حاکم کشمیر مقرر شو.

د مهاراجه دلیپ سنګه معصومانه قیادت او د هغه

د وزیرِ اعظم ماما جواهر سنګه ظالمانه پالیسي پشاوړ سنګه پسرِ رنجیت سنګه په بغاوت مجبور کړو. پشاوره سنګه لاهور نه اټک پلۀ فرار شو او په اټک قلعه قابض شو سردار جواهر سنګه د دۀ په تعاقب سردار چتر سنګه مقرر کړو. چتر سنګه ستمبر ۱۸۴۵ء په اټک قلعه قابض شو او پشاوره سنګه یې قتل کړو.

د پشاوره سنګه د قتل نه چې سکه لښکر خبر شو نو د جواهر سنګه خلاف راپورته شول. په ۲۱ ستمبر ۱۸۴۵ء یې جواهر سنګه قتل کړو. او د دلیپ سنګه د مور رانۍ چندان په سفارش د هغې د ناجائز تعلق یوۀ آشنا لعل سنګه په ۸ نومبر ۱۸۴۵ء وزیرِ اعظم مقرر شو.

سردار لال سنګه لیدل چې سکه لښکر قابو کښې راوستل ګران کار دے. هغۀ د مشیرانِ سلطنت په صلاح فیصله وکړه چې بې سره سکه لښکر په څۀ طریقه انګریز سرکار سره په جنګ آماده او تیاد کړي. د انګریز سرکار خلاف د دربار په تدبیر سیاست او منظم سازش سکه لښکر راوپارولے شو او ټول سکهان په دې اشتهار چې

"انګریزان د سکه سلطنت د پائمالۍ او قبضې اراده لري."

د انګرېزانو خلاف جنګ ته تيار شول. په ١١ دسمبر ١٨٤٥ء
د لدهيانه په لور د سردار تيجا سنګه، شام سنګه
اټاري والا او ځينې نورو سکه سردارانو د قيادت تحت
روان شول.

"راستہ میں اس فوج نے اپنے ملک میں بڑی دست
اندازیاں کیں۔ اور کسی گاؤں سے کوئی چیز قیمتاً نہ لی۔
اُس وقت رعایا ہاتھ اُٹھا اُٹھا کر دُعا مانگتی تھی کہ خدا
تم کو اس طرف پھر زندہ نہ لائے"[1]

چونکه د دې بې سره فوځ افسران په جنګ کښې مخلص
نه وو. نو په دې اساس انګرېز څخه د جنګ دوران هر
سپه سالار خپل محاذ نه فرار شو. نتيجه دا شوه چې بې
اندازې سکهان قتل شول او په هر محاذ يې شکست
وخوړو. فروري ١٨٤٦ء کښې انګرېزان په قصور قابض شول
او سکهان مجبور شول چې د صلحې ګفت وشنيد ته غاړه
کېږدي. د سکه سرکار له اړخه سردار ګلاب سنګه،
فقير نورالدين پسر فقير عزيز الدين، ديوان ديناناته
او بارکزي سردار سلطان محمد خان مقرر شول. په
٨ مارچ ١٨٤٦ء "معاهدهٔ لاهور" لاس ليک شوه. د انګرېز

---

[1] تاريخ پنجاب - از کھنیہ لال ص [illegible] -

شرائط من وعن تسلیم شول. یونیم کروړ روپیه تاوان جنګ مقرر شوچي د یوکروړ په عوض انګریزانو د دریایٔ ستلج او دریایٔ بیاس ترمینځ د جالنده هر دوآب په زرخیزه علاقه قابض شول. او پنځوس لکه روپۍ سردار ګلاب سنګه اداکړې چي د هغې په عوض هغه د کشمیر و هزاره علاقو حکمران تسلیم شو.

سردار ګلاب سنګه کښ هرڅو کوشش وکړو. چي د کشمیر واک اختیار تر لاس کړي. خو د شیخ امام الدین په مزاحمت ناکام شو. آخرکار د انګریز سرکار په امداد او کومک د کشمیر مالک او مهاراجه شو. دریا خان، رحمت الله خان، عبدالله خان او اخون لال محمد وغیره مطیع شول. او سکه قوم ځکه د غدارۍ اصلي صله او فائده چالاک مکار انسان سردار ګلاب سنګه حاصل کړه.

تر څو چي نسل در نسل د کشمیر مالک او وراثتي جاګیر دار شو. د ده د مرګ ستمبر ۱۸۵۷ نه پس د ده زوی رنبیر سنګه والیٔ کشمیر شو چي د ۱۸۵۷ د جنګ آزادۍ دوران د انګریز سرکار نه بردست هر ستیال وو.

د ۱۶ ستمبر ۱۸۴۶ د معاهدې مطابق د ماشوم دلیپ سنګه سکه ریاست کښې سرهنري لارنس د لاهور، جان نکلسن او هربرټ ایډورډ د دیره جات او بنوں، جارج لارنس او رینل ټیلر د پېښور، میجر ایبټ د هزارې او مسټر هربرټ

د اټک انګرېز اسسټنټ ریذیډنټ مقرر شول.

۱۸۴۷ء کښې د پېښور، هزاره فوجي سپه سالار سردار چتر سنګه د انګرېز سکه معاهدې خلاف راپورته شو. د هزاره اټک، پېښور یې ځان آزاد حکمران کړو. د کابل امیر دوست محمد خان یې په دې اقرار د کابل نه راوغوښتو چې که مونږ انګرېزان پنجاب نه بهر کړل نو د پېښور، ډېره جات علاقه به د امیر کابل حواله شي. د امیر دوست محمد خان سیاسي کوتاه اندیشي وه چې د سکه دویم جنګ دوران یې پېښور قبضه نه کړو او د یو کمزوري سکه حکمران مرستیال شو. دا سر چتر سنګه د پېښور په نظامت مامور ځینې انګرېز مشیران ګرفتار کړل او دومره قوت یې حاصل کړو چې تر دریائې چناب قابض شو.

"اور جب پشاور میں سکھ سپاہ نے بغاوت کی تو جنرل لارنس اور اس کی میم صاحبہ نے کوہاٹ میں سلطان محمد خان بارکزئی کے پاس پناہ لی تھی۔ صاحب موصوف سلطان محمد خان کے محسن اور آزاد کنندہ یعنی سر ہنری لارنس کے بھائی تھے سلطان محمد خان نے ننگِ افغانی کو داغ لگا کر جنرل جارج لارنس اور اُن کی میم صاحبہ کو بتاریخ ۳ دسمبر ۱۸۴۸ء سکھوں کے حوالہ کر دیا" [1]

---

[1] حیاتِ افغانی از محمد حیات خان ص ۸۸

انګرېز سرکار څخه د چتر سنګه نومبر ۱۸۴۸ء، دسمبر ۱۸۴۸ء او ۲۱، فروري ۱۸۴۹ء (جنګ ګجرات) کښې زبردست جنګونه وشول. خو سکهانو شکست وخوړه. سردار چتر سنګه او د هغه زوی شیر سنګه ګرفتار شول او د راولپنډۍ په مقام د انګرېز جرنیل مخکښې ګرفتار پېش شول. او انګرېز سرکار د ۲۹ مارچ ۱۸۴۹ء د یو اشتهار په موجب سکه سلطنت بمعهٔ شرقي افغانستان ضبط کړه.

د مهاراجه رنجیت سنګه ایکی یو پاتي نوی مهاراجه دلیپ سنګه عیسائیت قبول کړو او انګلستان کې ئې سکونت اختیار کړو. چې اخیرکار په ۲۳ اکتوبر ۱۸۹۳ء مړ شو. او دغسې:

"سکھوں کی جو حکومت دغابازی اور ظلم و سفاکی پر قائم ہوئی تھی۔ اپنے بانی رنجیت سنگھ کے بعد چند روز بھی سلامت نہ رہی۔"[1]

"رنجیت سنگھ کے حالات سے معلوم ہوتا ہے۔ کہ باوجود دانائی اور دلاوری کی اُسکو زمانہ آئندہ کا کچھ فکر نہیں تھا۔ اپنی زندگی تک نام کی بڑھانے میں ہر طرح ساعی رہا۔ مگر ایسا انتظام کوئی نہ کر سکا۔ کہ بعد انتقال اُس کے کام آتا۔"

---

[1] بہادر شاہ ظفر از رئیس احمد جعفری ص ۵۶

اٹک کی غربی اضلاع پر حملہ کرنے سے اُسنے بہت نقصان اُٹھایا۔ سوائے خرچ زرکثیر کے ہری سنگھ دلاور سپہ سالار کا مارا جانا کسی اور نقصان سے کم نہیں تھا۔ اگر مہاراجہ مآل کار کا سوچتا۔ تو اس کی ریاست کے واسطے اٹک یعنی سندھ کا دریا۔ مغربی جانب معقول حد تھی۔ اس نقصان کے سبب سے رنجیت سنگھ کا اپنا مقولہ ہے کہ ہری سنگھ میری گلہ میں ادستریوں کی مالہ "پشاور" ڈالدیا ہے[1]"

---

[1] حیاتِ افغانی از محمد حیات خاں صفحہ ۲۷

# سکهان او پښتانه

د تیمور شاه د وفات نه پس د پښتنو په سیمه د بادشاه
ګردۍ دور شروع شو. دا هغه دور دے چې د پښتنو د
ژرګونو کلونو د شان و شوکت، د بدبۍ، بهادرۍ او
زړتوب تاریخ څو کلونه دننه ختم او پائمال
شو. که یو ارخ د بهادرانو ځوانمرد پلار احمد شاه
ابدالي بزدل او شکي مزاج طبیعت ځوئي تیمور شاه
د پښتنو آن و شان نه نقصان ورسوه. نو بل پلو د
هغه زامن خصوصًا شاه محمود د دوئي د تباهۍ باعث
شو. او د پښتنو د ساکه او بهادرۍ که څه لږ ډېر
رمق ... او اثر پاتې وو نو هغه د بارکزو سردارانو
د لاسه تباه و برباد شو. د هر قام د عروج او زوال
څه اسباب او وجوهات وي. د پښتنو د کمال سبب
که یو ارخ د دوئي زړتوب، توریالتوب او ځوانمردتوب دے
یا د محمد غوري د انتظامي اصلاحات په اساس خاندان

غلامان دَ علاؤالدین خلجي په انتظامي ډهانچه تغلق او
سادات دَ بهلول لودي او سکندر لودي په انتظامي نېد ګیست
بابر وهمایون او دَ شیر شاه سوري په انتظامي کارګزارۍ
مغل ټپل حکومتونه قایم و دایم کړل نوبل پلو دَ دوی
دَ زوال سبب دَ دغه اوصاف ضعف او کمزوري نه ده بلکه
دَ دغه ترڅوان بهادر پښتون واک اختیار او مشري دَ
خه داسې بزدل او پست ذهن لالچي سرداران ترلاس شو
چې دَ دوی وقار، عزت او ننګ ناموس یې پائمال کړو. او
آخرکار آزاد طبع حریت پسند پښتون دَ سکه او انګریز
غلام شو او هغه قوم چې نوم نه یې دَ نیا لرزېدل له دَ ټپل
نوم نه متنفر او بېزاره شو.

دَ دُنیا په څو څومره جمهوري حکومتونه قایم دي.
دغه جمهوریتي نظام نه ډېر اګاهو دَ پښتنو هر بادشاهت
دَ جمهوریت په اړانه ولاړ حکومت وو. دَ یو قبیلي خلق
به راغونډ شول. ټپل یو مشر به یې متقرر کړو. بیا دَ
مختلف قبیلو دغه نمائنده مشران به جرګه شول او چې دغه
نمائنده قبیلوي مشرانو به کوم کس خوښ کړو. دَ هغه تحت
به جنګېدل. او دَ جنګ په میدان کامیابۍ او کامرانۍ نه
وروستو به دغه مشر بادشاه شو. دَ پښتون قوم دَ نابیکلي
دستور "پښتو" په نزد "بادشاه" محض یو آئیني صلادو

د اختیارات اصلي سرچینه د پښتنو مشرانو دغه پارلیمنټ یا لویه جرګه وه. د بادشاه او مشرانو اختیارات د برابرۍ په بنیاد وو. د برابرۍ د اختیارات نه تجاوز او روګرداني د پښتنو مشرانو په نز د جرم وو. او د بادشاه خلاف بغاوت او نافرماني وه. ابراهیم لودي (۱۵۱۷ء تا ۱۵۲۶ء) یا اسلام شاه سوري (۱۵۴۵ء تا ۱۵۵۳ء) وغوښتل چې د پښتنو مشرانو مصلحت او مشورو نه ډډه وکړي. مضبوط مرکز قایم کړي او صرف ځان ته ټول د بادشاهۍ ټول اختیارات منسلک کړي نو د هغوی خلاف د پښتنو نمائنده مشرانو بغاوت او سازش شروع کړو. چې د ابراهیم لودهي او اسلام شاه سوري د قتل باعث شول. د مضبوط مرکز او شهنشاهیت مرستیال بادشاه او د آزاد خیالۍ طبیعت حامي پښتنون نمائنده مشرانو ترمینځ د دوو نظریو دغه جنګ اکثر د پښتنو د بادشاهت د تنزل سبب ګرځېدلې دی.

د قبیلو د نمائنده مشرانو د حقوقو پاسداري د هر بادشاه اولین فرض وو. مضبوط مرکز او د سلطنت ټول اختیارات یو کس ته محدودیت د پښتون قوم د آزادپسند طبیعت او جمهوریتي مزاج خلاف وو د هغوی په نز د بادشاه د برابرۍ په بنیاد مشر وو. آقا یا مالک نه وو چې دوی یې غلامان یا نوکران شي.

بهلول لودی (۱۴۵۱ تا ۱۴۸۹ع) پښتانه سرداران

خپل مالګری ګڼل. هغوئی څخه به یو څوک ناست وو او په زمکه

کښیناستو، یو څوک به بیا ورڅخه لوړ خوږه. د

نورو پښتنو مشرانو د اسونو نه یه د هغه د اس سپړه نه وو

چې کوم پښتون سردار به خفه شو د هغه کور ته به ورغلو

پښکے او نوره به یې د هغه مخکښې کښښوده او ورته

به یې ووې چې

"مانه که بل څوک دې ذمه واری د پاره ناسو

نه ښه ښکاری هغه چوڼ کړئ او ما ته یله

ذمه واری راکړئ"

"اگر لائق نمیدانید- این کار دیگر اختیار بکنید و مارا کار

دیگر فرمائید-"

هسټری آف دی افغانز ان انډیا

از عبدالرحیم صـ ۵۲.

سکندر لودهی (۱۴۸۹ تا ۱۵۱۷ع) د پښتنو سردارانو

به موجودګۍ کښې په تخت نه کښیناستو. هو پښتون سردار ته

به احتراماً د اس نه کوز یدو.

"برنیئر" چې د اولسمې صدۍ منځوماته موده کښې

هندوستان ته راغلے وو. هغه د پښتنو متعلق لیکی:

"د پښتون قوم د پر معمولی ادنی خلق او عنی چې د دوئی ماشکیان او

بهیاران هم داسوج لري چي مونږ د دهلي د تخت اهل یو»
جي. اړ. وار برټن په خپل کتاب "خیبر کښي آتلس کاله" ص ۳۱۷ لیکي:

«د هغه (ډیټي کمشنر) د ضلعي خلق یا د هغه د ضلعي پیوست آزاد قبائل که بلوچ نسل څخه تعلق لري نو دغه خلق د خپل مشربانو ماندار رتیا بحدار وي. او په دې وجه د دغه قسر دپاره د حکومت کاروبار چلول آسان وي. د هغه کار دا دی چي تومان دار خپل عما د کښي واخلي. بیا څه وي د هغه تبدل قوم هغه پسي داسي راځي لکه سیږي چي خپل مالک پسي راروان وي. خو بل رخ که د هغه رعایا پښتانه وي یا د آزاد قبائل سرکښ نسل وي نو د هغه ذمه داري گرانه شي ځکه چي هغه به یا خو هر کس خپل اعتماد کښي واخلي او یا د هري قبیلي هر ناکښي به قابل خلق گوري او دا هله ممکن ده چي دغه انسر کښي تحمل او صبر د اندازه بي صحي وي او د مروخت څخه وي چي د هغه غسي کوښي»

۱۷۹۳ع نه تر ۱۸۱۸ع د سدوزي ورونو د محلاتي سازشونو، بادشاه گردي او د اقتدار د جنگ تاریخ دی د سدوزي په خاتمه اقتدار بارکزي سردارانو ته منتقل شي. خو د بارکزي سردارانو غیر مستقل مزاجه حرص او لالچ د پېښور او ډیره جات پښتانه د سکه سرکار غلامان کړل او د سکه سرکار په اختتام د انگریز غلامان شول. او دغسي پښتون په دوو برخو یعني برا و لر پښتونخوا کښي ویشل شول.

د اورنگ زیب په زمانه حیات د دکن په سیمه د مسلمان

جاګیردار او منصبدار کارنده او کاشتکار مرهټه هندو د سیواجي تحت متحد او راپورته شول او مُغل سلطنت ئې تباهي ته مخامخ کړو. خو د مُغل خوش قسمتي وه چې عین په دغه موقعه احمد شاه ابدالي نمودار شو. مرهټه د باقاعده میداني جنګ تجربه کارنه وُو. شکست ئې وُ خوړو او د یو عظیم سُلطنت مقاصد حیات ئې ختم شو. د دکن د مرهټه هندو په پېروي او تتبع د پنجاب هندو هم بیدار شو. سِکه مذهب ئې قبول کړو او لکه د دکن د مرهټه وُ ئې ګوریلا جنګ آغاز کړو. خو د دکن مرهټه چې قوّت او اقتدار حاصل کړو. نو د پښتنو په مزاحمت ئې د پاني پت په میدان په ورومبي ځل میداني جنګ بائلود او د عظیم مرهټه سُلطنت د قیام خیال ئې ګډوډ او متزلزل شو. ولې بل اړخ "سِکه" حتی الوسع باقاعده میداني جنګ نه ځان په ډډه وُساته او د ګوریلا جنګ په اساس ئې د پنجاب په سیمه سِکه سُلطنت قائم کړو.

د پاک و هند په سیمه کښ دوه مضبوط سِکه او انګرېز حکومت تشکیل او د پښتنو په سیمه اِنتشار او افتراق د دغه دوه قوّتونو د استحکام باعث شو. او د پښتون د ستګونو کلونو بالادستي تباه و برباد شوه. د پنجاب په سیمه پوُ اړخ کښ د رنجیت سِنګه د لاسه د پښتنو قتلِ عام جاري وو.

اوبل اړخ سدوزي او بارکزي د اقتدار په جنګ بوخت وو. ملتان او قصور وغیره علاقوکښې د پښتنو د ویشو سیلاب بونه بهېدل. او پښتونخوا د سدوزي ورونو د اقتدار د جنګ په تماشه وه. د نوښار په مقام د کابل سیند په یو غاړه د پښتنو د لاشونو ډېرې جوړېدل او بله غاړه بارکزي سرداران د توپ وتفنګ اولوېې سنګربا وجود ویرې اخیستي حېران ولاړ وو.

۱۸۰۰ء کښې د شاه زمان بصارت نه محرومي او تخت نه دستبرداري او ستمبر ۱۸۰۱ء کښې د شاه شجاع شکست ۱۸۰۳ء کښې د شاه محمود کابل و پېښور نه معزولي او د شاه شجاع کامیابي. ۱۸۰۹ء کښې د شاه شجاع معزولي او د شاه محمود سر دوباره کامیابي داسې واقعات او حالات دي چې هر پښتون ئې په لوستو دلګیر او خفه شي. او بقولِ سیّد محمّد لطیف:

"رنجیت سنگھ نے سلطنتِ کابل کے ضعف سے فائدہ اُٹھایا اور شاہانِ کابل کے قایم کئے ہوئے حاکم جو اس ملک کی مختلف مقامات میں تھے۔ اُنہیں اپنا تابعدار بنا کر اُن سے نذرانہ اور خراج لیا" [1]

---

[1] تاریخ پنجاب ص ۱۰٦

۱۸۰۹ء کښې چې شاه شجاع الملک د "نیملا" په مقام شاه محمود
نه دوباره شکست وخوړو او دغه ناسکه ورور شاه محمود
دوباره د کابل و پېښور مالک شو. نو شاه شجاع پنجاب
نه وتښتید و. د دۀ ورور او سابقه شاه افغانستان شاه زمان
د راولپنډۍ په مقام پښتنو ځخه آګاهونه قیام پذیر
وو د غه زمانه راولپنډۍ د خټک پښتنو جاګیر او علاقه
وه او د دریائې سنده او دریائې جهلم ترمینځ مکمل
طور پښتانۀ قابض وو. البته د رنجیت سنګه لښکر به ځینې
وخت د پښتنو د خانه جنګۍ نه فائده پورته کړه. دریائې
جهلم نه به راپورې وتل او ځینې علاقې به یې لوټ
تالان کړې. د هرې رام کپتا تحریر ځخه ښکاري چې د دې
مهمات سرکرده مشر ملکه سنګه تیوریه وو.

"دا ځائې (راولپنډۍ) د ملکه سنګه تیوریه
تحت دے. دلته ډیر زیات خټک آباد دی.
سکهان چې حمله وکړی نو دوئې خراج ادا کړه
خو چې هغوئې ستانۀ شی. نو دوئې بیا خپل آزاد
حیثیت برقرار وساتی. د راولپنډۍ نه (رخ به
پورته) شپږ میله لرې "شاه پوره" سرائې
ده. چې جو خت ورځخه د او بو لختې بهیږی. په
ولسه د بخو خیستو پُل دے. زمینداری پښتانۀ

دی. سکهانو په دوئ حمله وُکړه د دوئ
ځاروی یې بوتلل خو د دوئ اطاعت ئې
وُنه مَنو دو-دې نه پورته حسن ابدال دے
چې نهٔ مېنداریې پښتانهٔ دی او د کابل حکومت
ته خراج ورکوی-دې نه اخوا شمس آباد
دے چې خټک پښتانهٔ یې کروندګر دی.
بیا اټک راځی چې د دریائې سنده په غاړه
د بوغ د یا سه پروت دے. دلته دوه زره کوره
آباد دی. قلعه یې د خټک پښتنو قبضه
کښې ده." [1]

د تاریخ ضلع پشاور مطابق،

"وُتو دُرّان (احمد شاه ابدالی) بذاتِ خود پشاور سے
روانہ ہو کر بہمراہی سعادتمند خان (خٹک) فوج مرہٹہ
کے مقابلہ کو آیا اور اُن کو شکست دی. اور اسی معرکہ میں
سعادتمند خان کی کوششوں سے مشکور ہو کر بہ عطائے لقب
(سرفراز خان) سرداری تالب دریائے جہلم اوسکو حاکم
بنادیا." [2]

---

[1] لیٹر مُغل (انگریزی) ص ۳۰۲
[2] تاریخ ضلع پشاور- گوپال داس ص ۳۸۰

دَ شاه شجاع شکست او دَ شاه محمود سر دوباره اقتدار
دَ رنجیت سِنګه دَپاره یو نیک فال وو. هغهٔ مخې ته دَ
موقعې دَ نزاکت نه فائده پورته کړه او دېرې تېزۍ
لاهور نه جلالپور ته راورسېدو او په وروستي ځل
یې دَ سِنده سا ګرد وآب او وادي کښې دَ خوشاب په
علاقه حمله وکړه. دَ حاکمِ خوشاب فتح خان سپه سالار
جعفر خان بلوچ یې مقابله وکړه خو شکست یې وخوړو
او په اطاعت منودو مجبور شو.
دلته په ۳ فروری ۱۸۱۰ء شاه شجاع سِکه مهاراجه
سره ملاقات وکړو. او دَ خپل ناسکه ورور شاه محمود
خلاف یې رنجیت سِنګه نه امداد طلب کړو. خو دَ مهاراجه
په غیر تسلی بخش جواب شاه شجاع سخت مایوس شو.
او خپل قدیم نمک خوار او مقرر کړده ناظمِ کشمیر
عطا محمد خان پسرِ مختار الدوله سره په پناه اخستو
مجبور شو.
دلته دا خبره دَ ذکر وړ ده چې رنجیت سِنګه دَ
سیاست په هر رموز پوئې او هوښیار وو. هغهٔ دا نطعی
نهٔ غوښتل چې شاه شجاع دوباره بر سرِ اقتدار شي.
ځکه چې دَ پېښور په ښېښتو دَ شاه محمود دومره اثر
رسوخ نهٔ وو لکه چې دَ شاه شجاع وو او دَ هغهٔ دَ سِکه سیاست

حدّ فاصل د پښتو پښتنو څخه منسلک او پیوست وو. او د دریائي جهلم او دریائي ستلج ترمینځ چې کوم پښتانه د سکهانو د بربریت او تشدد ښکار وو. نو د دوی اکثریت د پښتو پښتنو وو. دغه وجه ده چې هغه د شاه شجاع د فوجي امداد په طلب هم خاموش شو. د شاه شجاع قیادت او حاکمیت رنجیت سنګه د پاره د شاه محمود په مقابله زیات خطرناک وو. حقیقت دا دے چې شاه زمان یا شاه شجاع برسرِ اقتدار پاتې وے نو کوم کله رنجیت سنګه د دریائي جهلم نه یو قدم هم وړاندې راغلے وے.

رنجیت سنګه د خوشاب د فتح نه جوخت وروستو ساهیوال قبضه کړو او دے نه پس ئي د ریاستِ بمبر حاکم سلطان خان، د اکهنور محمد عالم خان او د راجوړي اګر خان په طاعت منو دو او پنجاب څخه په الحاق مجبور کړل.

نومبر ۱۸۱۱ء وو، چې د شاه زمان او شاه شجاع تبوله کور نے لاهور ته ورسیده او رنجیت سنګه څخه ئي پناه واخسته. شاه محمود چې دې واقعات نه خبر شو نو د هغه کچه سیاسي بصیرت د رنجیت سنګه د حمایت او دوستۍ په سوچ شو. هغه د حاکم کشمیر عطا محمد خان خلاف د مهاراجه نه فوجي امداد طلب کړو. رنجیت سنګه دُوراند بښې نه کار واخستو او د رهتاس

قلعه کښې د وزیر کابل فتح خان او رنجیت سنګه ترمنځ ملاقات نه وروستو لس زره سکه لښکر د دیوان محکم چند د زیارت تخت د شاه کابل شاه محمود په حمایت کشمیر ته روان شو۔

## د کشمیر جنګ

د شاه کابل (شاه محمود) او سکه مشترکه لښکر د کشمیر ۱۸۱۲ء کښې په کشمیر فوج کشي وُکړه. عطا محمد خان يې مزاحمت وُکړو. په زرګونو پښتانه قتل شول۔ عطا محمد خان او شاه شجاع شکست وُخوړو. او سری نګر نخه جوخت د شیر ګړه قلعه کښې محصور شول۔

د عطا محمد خان او دیوان محکم چند ترمنځ په دې شرطو خفیه صلح وُشوه چې عطا محمد خان او شاه شجاع به وزیر کابل فتح خان ته حواله کیږي. خو عطا محمد خان به د قلعهٔ اټک نه د مهاراجه په حق کښې دستبردار کیږي او د خپل ورور جهانداد خان افغان فوجدار اټک په نوم به د دستبرداري تحریري بیان اسنوي۔

بل اړخ لاهور کښې د شاه شجاع الملک د ښځې شاه بیګم (وفا بیګم) رنجیت سنګه ته منت زاري او سوال وو چې شاه شجاع د کابل بادشاه حواله نه شي او لاهور ته محفوظ راوُرسي. نو د هغهٔ په سلامتۍ به کوه نور هیره

دَمهاراجه حواله کړي.

دَ شاه کابل (شاه محمود) دَ وزیر فتح خان که هر څو داسرار وو چي عطا محمد خان او شاه شجاع دَ هغهٔ حواله شي. خو دَ رنجیت سنګه په دې واضح هدایات چي وزیر فتح خان که دَ محکم دیوان چند دَ صُلحې په شرطو کښې څه قسم خنډ او اړوک اچوی نو هغه څه دې جنګ وشي. دَ وزیر فتح خان په درخواست هیڅ قسم غور ته تیار نهٔ وو.

رنجیت سنګه ته دَ دې جنګ فائده دا وُشوه:

۱: دَ عطا محمد خان دَ تحریري بیان په وصولیابۍ هغهٔ مخې څخه خپل مُسلمان سپه سالار او مشیر فقیر عزیز الدین یولوي لښکر څخه دَ قلعه اټک فوجدار جهان داد خان په لور روان کړو او دَ قلعه اټک دَخل ئې ترلاس کړو. دَ رنجیت سنګه دَ قلعه په بې مزاحمته اخستو دومره خوشال شو چي څو ورځې ئې دَ عیش و عشرت جشن کرم وُساتهٔ.

۲: دَ هغهٔ دَ ستړکو دَ زغے شاه شجاع الملک اوس دَ هغهٔ نګرانۍ او حراست کښې وو. شجاع الملک که هر څو دَ کوه نور دَ موجودګۍ نه انکار کوو. خو هغهٔ دغه کوه نور په زبر دستۍ ترلاس کړو او دَ

شاهي کورنۍ د پر مال واسباب يې هم ضبط کړو

ځو چې شجاع الملک د رنجيت سنګه د تشدد او ناکردو نه

مجبور شو او اپريل ۱۸۱۵ء کښې يوه شپه په تيارهٔ

کښې د هغهٔ د حراست نه وتښتيدو او لوديانه کښې

ئې انګريزانو څخه پناه واخسته.

۳: د اټک قلعه بې جنګ وجدل د رنجيت سنګه په قبضه

شوه او د هغهٔ د سلطنت حدود د رهتاس نه اټک ته

منتقل شول. شاه کابل ته که يو خوا د کشمير آسانه

لاره بنده شوه. نو بل خوا رنجيت سنګه د پاره د پښتنو

په پکهلي (هزاره) علاقه هم قبضه آسانه شوه. او د

پېښور د هغه قبائل خلاف فوج کشي هم آسانه شوه

چې تمام عمر د پنجاب قابضين او مالکان وو.

۴: د کوه نور قيمتي هيره د رنجيت سنګه لاس ته شوه.

## د حضرو جنګ

د پښتنو خوا پښتانه چې د عطا محمد خان په د سيلو

شرائطو صلح او د جهانداد خان د اټک قلعه سکهانو ته بې

جنګ وجدل حواله کولو نه خبر شول نو سخت قهرجن شول.

يو لوئي لښکر تيار شو او د وزير فتح خان تحت د پکهلي

په لار اټک ته ورسيدل او د اټک قلعه ئې محاصره کړه.

د رنجيت سنګه چې دې واقعات نه خبر شو نو ديوان

محکم چند بیې یولوئي سکه لښکر ځخه د پښتنو خلاف را روان کړو. د دیوان محکم چند او فتح خان ترمینځ په ۱۲ جولائی ۱۸۱۳ء ځخه او په مقام یوزبر دست جنګ وشو پښتانه په دغه ورځ شو کامیاب و کامران وو. خو په ۱۳ جولائی ۱۸۱۳ء یې شکست وخوړو او فرار شول ځکه د سکه پښتون د بقا او فنا جنګ وو. که دې جنګ کښې پښتانه کامیاب وے نو ټوله یوازې دا چې د سند ساګر په دوآب به ئې ګرفت مضبوط وو بلکه د دریائي جهلم نه پورې د ټول سابقه مقبوضات او جاګیر د بېرته قبضې امکانات به هم روښان روښان وو. او نفسیاتی طور به یې آئینده هم ښه اثرات وو.

## د کشمیر دویم جنګ

رنجیت سنګه په دې فتح دومره خوشحال او زړه ور شو چې هغه اراده وکړه چې د شاه کابل ناظم محمد عظیم خان په هر قیمت کشمیر نه بهر کړي. هغه یولوئي لښکر ځخه رهتاس ته راورسید و. د هغه د حکم مطابق دیوان محکم چند د مکهن کالا باغ قلعه دادن خان نه قبضه کړه او بیا راجوړي ته ورسید ل. د راجوري او کوټلي حاکم آغر خان ئې اطاعت قبول کړو او بیا ئې په کشمیر حمله وکړه. خو جون ۱۸۱۴ء کښې پښتانه دومره په زړه وجنګېدل چې سکهانو شکست وخوړو. ډیر کونه سکهان قتل شول

او رنجیت سنګه د ګلېر او پرېشان لاهور ته راستون شو

"مهاراجه رنجیت سنگھ مرتے دم تک کشمیر کی اس مصیبت کو نہیں بھولا۔ اور جب کبھی یاد کرتا تو کانپ اُٹھتا تھا،" [1]

رنجیت سنګه چې څنګه لاهور ته راورسېد نو د غلته د خپل وفادار سپه سالار دیوان محکم چند د مرګ (اکتوبر ۱۸۱۴ء) نه هم خبر شو.

## د کالاباغ جنګ

د مکهډ (کالاباغ) قلعه چې سکهانو قبضه کړه. نو څو ورځې پس پښتانه قبائل راغونډ شول او د قلعه محاصره ئې وکړه. د اټک نه ډېر لوئې سکه لښکر د مکهډ د محصور سکهانو په امداد راورسېدل. خو سکهانو شکست وخوړو. او ډېر زیات قتل شول. رنجیت سنګه چې د دې واقعات نه خبر شو د سردار دل سنګه او دیوان موتی رام پسر دیوان محکم چند تحت یو لوئې لښکر د کالاباغ په لور رادوان کړو. خو د سکه لښکر رارسېدو نه وړاندې پښتنو د قلعه محاصره پرېښې وه او منتشر شوي وو.

---

[1] تاریخ پنجاب ۔ سید محمد لطیف ص ۱۳۱

## جنګ هزاره

د اټک د فتح په وجه د هزاره علاقه د سکهانو تحت
وه. خو د سکهانو په زور ظلم او زیاتی د دغه ځائي
خلق دومره تنګ شول چې د وئ د سید محمد خان تحت
راپاسیدل. بغاوت یې وکړو. خو سید محمد خان د جنګ
دوران شهید شو. د هغهٔ ورور سید احمد خان د
سکهانو خلاف جنګ جاری وُساتهٔ او د حکم سنګه تحت
یولوئ لښکر د اټک قلعه کښې محصور شو رنجیت سنګه چې
دې واقعات نه خبر شو نو یو لوئ لښکر ئې راولیږلو
او هزاره ئې مطیع او تابع کړه.

## افسوسناک واقعات

۱۸۱۷ء وو چې د شاه محمود قابل اعتماد وزیر فتح خان
د ایران د فتح علی شاه بادشاه یو لوئ لښکر له د هرات
په مقام شکست ورکړو. فتح خان د هرات حاکم حاجی
فیروز دین گرفتار کړو او د دغه ځائې په مستحکم انتظام
او بند وبست بوخت شو. د فتح خان غیر موجودګۍ د هغهٔ
مخالفین سرګرم عمل کړل. د شاه محمود یو بد کردار
بد خوئ او شرابی زوئې مرزا کامران ئې ځان ته خخه
کړو. او بادشاه ئې پخپل لمسون او شرارت د وزیر فتح خان
خلاف دومره مشتعل کړو چې هغهٔ حکم وُکړو چې فتح خان

نه سترګې ووباسئ. کامران د بادشاه په حکم دېرېـه
تېزۍ هرات ته را ورسېد و. او دلته یې فتح خان
د بصارت نه محروم کړو او بیا ورو ستو يې شهید کړو.

د پښتنو اصلي او آخري زوال د دې تاریخ نه شروع
شو او په یو څو کالو کښې د دنیا په قاموسو کښې دا
شان ذلیل او رسوا شول چې د دوئ ټول ملک په
ډېره لږه موده کښې د غېر قومونو په قبضه کښې راغے[۱]
د فتح خان د بصارت په محرومي د هغه نور بارکزي
ورونه او پښتانه را وپارېدل. د فتح خان ورونه،
محمد عظیم خان او دوست محمد خان ډېر په تېزۍ ۱۸۱۸ء
کښې کشمیر نه کابل پلو را روان شول. شاه محمود کابل نه
غزني ته وتښتېد و. او د سردارزي حاکانو په ځاي بارکزي
سرداران د کابل واکداران شول. غزني کښې کامران او
شاه محمود ړوند فتح خان شهید کړو د هغه په شهادت
پښتانه مزید ناراض شول او هغوئ د پښتنو د مخالفت
په اساس غزني نه هم فرار شول او هرات ته ورسېدل
خو بارک زي سرداران دلته سکهانو څخه په جنګ کښې تل
نو په دې وجه شاه محمود، کامران مرزا، او محمد جهانګیر
کامران د ایران او روس د ډېر دست مداخلت باوجود
د هرات په سیمه څه موده حاکمان وو.

[۱] د پښتنو تاریخ جلد اول صـ ۲۲۱

د سدوزي د اقتدار په خاتمه بارک زي ورونه د مختلف علاقو حاکمان شول. محمد عظیم خان د کابل، دوست محمد خان د غزنی، پوردل خان د قندهار، جبار خان د کشمیر او یار محمد خان د پېښور حاکم شو. او دغسې دا ټول علاقه د یو بادشاه تحت نه وه بلکه د برابرۍ په بنیاد د بارک زي سردارانو تحت شوه.

## رنجیت سنګهه او پېښور

رنجیت سنګهه د سدوزیو او بارکزیو ترمنځ د اقتدار جنګ او د بارک زیو سردارانو د منشتوا ... اوکړه او د دې نه فائده پوره کړه. هغه اکتوبر ۱۸۱۸ء کښې حضرو ته راورسېد او بیا سکهه دستې د دریائې سِندهه نه راپورې د با واپېهلې تحت د حالات د جائزې اخستو په غرض راولېږل. تو دلته د فیروز خان خټک، نجیب الله خان او حاجي الهی خان تحت د پښتنو د اووه زره لښکر د لاسه دغه سکهه دسته قتل شوه. صرف څو کسان بچ واپس پوره ورتلل او مهاراجه ئې ټول حالات نه خبر کړو. هغه سخت غضبناک شو. اوځپل ټول لښکر څخه دریائې سِندهه نه راپورې وتو. د پښتنو کم تعداد لښکر ئې مزاحمت وکړو. خو شکست ئې وخوړو او رنجیت سنګهه په خیرآباد او جهانګیرې قابض شو. دلته د دیوان

شام سنګه په ذریعه معلومه شوه چې پېښور کښې منظم
نوځ نښتة نو ځکې څخه د پېښور په لور را روان شو.
یار محمد خان حاکم پېښور هشتنګر ته فرار شو او رنجیت سنګه
په ۲۰ نومبر ۱۸۱۸ء په پېښور قابض شو. پېښور څخه
جونت څمکنی ئې لوټ تالان کړل[۱]. او بالاحصاریې هم
لوټ تالان او تباه و برباد کړو. د څمکنی او بالاحصار آبادي
ته یې اور ورته کړو او دواړه ځایونه یې وسوزول.
هغه دریا ورځې پېښور کښې ایسار وو. شام سنګه د پېښور
د اربابانو نه پنځویشت زره (۲۵۰۰۰) روپیه نذرانه
واخستله. رنجیت سنګه د یار محمد خان نه څو ازلس توپې قبضه
کړې. هغه بیا جهانداد خان افغان سابقه نوجدا راتګ د پېښور
حاکم مقرر کړو. او شام سنګه ئې د هغه نائب او سپه سالار مقرر
کړو. خو فوځ یې پېښور کښې پرېښودو او بیا لاهور ته
روان شو. د مهاراجه په ستنېد و یار محمد خان د پښتنو په
امداد دوباره په پېښور قابض شو. جهانداد خان او شام سنګه
وتښتېدل. خو یار محمد خان د پېښور دوباره ګرفت باوجود
دومره خوف او هیبت اخستے وو. چې حافظ روح الله جان ئې
د سفیر په حیثیت د رنجیت سنګه دربار ته ولېږلو. او د

---

[۱] تاریخ پنجاب. از سید محمد لطیف ص ۱۲۱

یو لکھ روپو سالانه خراج په ادائیګۍ یې خپل ځان دَ سِکھ
سرکار تابعدار د پېښور په نظامت برقرار و ساتهٔ.
دَ پېښور قبضه او تصرّف نهٔ یوازې دا چې دَ رنجیت سِنګھ
دَ اوسني پنجاب دَ تحفظ ضامن شو بلکه دا حمله دَ انګرېز سرکار
دَ امن و سکون هم باعث شوه. دَ مستقبل تاریخ تر دې وخته صفا
ښایئ چې دغه نه وروستو دَ مهم جو او بهادر پښتنو خوف و
نظر دَ اهل هند عموماً او دَ اوسني پنجاب اوسېدونکو ذهنو
نه خصوصاً بېرته شو او دَ پښتنو دَ سلګونو کلونو بالادستي
او ذهني برتري دَ پاک و هند په خلقو ختم شوه.
رنجیت سِنګھ دَ دې دومره کامیابۍ باوجود تر دې وخته
دَ سرکاري کاغذات او تحریرات پام لرنې او ساتنې هیڅ بندوبست
نهٔ وو. دَ هغهٔ دَ حکومت ټول کاروبار په زباني احکامو بنا وو
نو دَ پېښور دَ فتح نه پس دَ دې ځائې یو هوښیار استوګن
بهولی داس دَ هٔ څخه نوکر شو او هغهٔ دَ سِکھ سرکار دَ دفتري
او محکمانه حساب کتاب صحي او برابر کړو او دې نه
وروستو دَ سِکھ شاهي دربار ټول معاملات او دَ حکومت
ادانه یې تحریري او مستقل طریقهٔ کار قایم شوه.[1]

---

[1] 1- A Book of Reading on the History of the Punjab

## دَ شاه شجاع کوشش

شاه شجاع چې دَ شاه محمود زوال او تواړنه خبر شو نو هغه دَ لدهیانه نه پېښور ته راوُرسو دَ قاضي عطاالله مرحوم دَ پښتنو تاریخ جلد اول مطابق هغه دَ بارکزي سردار محمد عظیم خان په دعوت شکارپور نه پېښور ته راوُرسېدو حقیقت چې هر څه وي خو دَ بارکزي سردارانو او شاه شجاع ترمینځ دَ خیبر په غرونو کښې یو معمولي جنګ وُشو ـ شاه شجاع شکست وُخوړو او ډېره غازي خان ته فرار شو رنجیت سنګهه چې دَ شاه شجاع رټنګ، جنګ او ناعمل نه خبر شو نو هغهٔ دَ مکهډ کالاباغ سِکهه حاکم ته دَ دهٔ دَ ګرفتارۍ حکم وُکړو. خو شجاع الملک په لاس ورنغلو او هغه لدهیانه ته واپس وُرسېدو.

## دَ کشمیر دوېم جنګ

رنجیت سنګهه جون ۱۸۱۹ء کښې دَ پښتنو او محمد عظیم خان نه زبردست شکست خوړلے وو. دَ دغه شکست بدل دَ هغهٔ په نظر کښې وو، فضا هم صفا او شوه ځکه محمد عظیم خان کشمیر کښې نهٔ وو، کابل کښې وو. دَ کابل او پېښور حالات هم څه خاص نهٔ وُو. دَ دغه وجه نه چې هغهٔ خپل مقصد حیات په پوره کېدو وُلیدو. دَ کشمیر دَ قبضې یې پخه او مصمم اراده وُکړه. هغهٔ دَ بهېر

راجه سلطان خان خپل قبیله ته آزاد کړو او دغه په راهنمایئ، تجربه او علاقائی معلومات، خپل منزل ته روان شو. د راجوری محاصره یې وکړه. خو آغر خان میدان جنګ نه فرار شو او دغه ورور رحیم الله خان د مهاراجه اطاعت ګذار شو. د پونچھ حاکم زبردست خان هم د معمولی مزاحمت نه وروستو فرار شو. په ۳، جولائی ۱۸۱۹ء د سکھ خالصه دل او پښتنو ترمنځ یو خونړے جنګ وشو. د جنګ په شروع کښې د پښتنو بالادستی وه خو وروستو یې شکست وخوړو. د پښتنو دوه بهادر سرداران مهردل خان او صمد خان شهیدان شول.

د محمد عظیم خان ورور عبدالجبار خان سری نګر نه د باره مولا په لار پېښور ته وتښتېده او په ۴، جولائی ۱۸۱۹ء سکھ لښکر سری نګر کښې داخل او قابض شو او دیوان موتی رام پسر دیوان محکم چند د کشمیر اولنے سکھ ګورنر مقرر شو او دغسې دا علاقه چې اکتوبر ۱۷۵۲ء راسې د پښتنو سدوزی سردارانو ماتحت وه د یو کم اویا کاله ۶۹ باشاهت نه پس د سکھ سلطنت ریاست شو.

## د هزارې دویم جنګ

د کشمیر په قبضه او فتح د هزارې پښتنو د سکھ د

---

۱۸۲۱ء کښې هری سنګھ نلوه د هری پور په نوم

نور په صفحه

بر بویت او تشدد په ویره او سهم بغاوت وُکړو. دَ شهزاده شیر سِنګه تحت یو لوئې لښکر دَ پښتنو سردارانو دَ بغاوت خلاف راروان شو. څو ځایه خونړې جنګونه وُشول چې دَ تربیلا او دربند جنګونه دَ ذِکر خاص وړ دی. په دې جنګ کښې سِکه سپه سالار دیوان رام دیال پسرِ موتی رام (ناظم کشمیر) هُم قتل شو. اخر کار پښتنو شکست وُخوړو او فرار شول. دسمبر ۱۸۲۲ء کښې په دوبم ځل پښتانه راغونډ شول چې سِکهان هزارې نه وُکاږی. دوئی دَ اټک قلعه محاصره کړه او یار محمد خان حاکم پېښور نه یې امداد وُغوښتو. نو دغه غدار دَ رنجیت سِنګه له ویرې سکوت اِنکاری شو. رنجیت سنګه چې دې واقعات نه خبر شو نو جنوری ۱۸۲۳ء کښې دَ مصر دیوان چند تحت یو لوئې سِکه لښکر څخه اټک ته راوُرسید و. پښتانهٔ منتشر شول او دَ سِکه گرفت مزید مضبوط شو۔

---

[۱] یوه چاؤنړې تعمیر کړه او دلته یې دَ خپل فوځ یوه لویه دسته تیار څخه نژدې په قلعه کښې ډیره کړه.

۱۸۴۹ء کښې چې انګریز قابض شو نو دَ سِکه فوځ لویې اکثریت امرتسر ته لاړل. څو ۱۴ اگست ۱۹۴۷ء پورې دَ هرې ښار کښې دَ هندوانو اکثریت وو.

رنجیت سنګهه ستمبر ۱۸۲۳ء کښې یو واربیا د جهلم
نه راپورې وتو - د هری سنګهه په وساطت ئې د هزاره پکهلی
او دمهتور کښې شمېر پښتانه شهیدان کړل. په دې موقعه
یار محمّد خان د اټک په مقام د مهاراجه خدمت کښې حاضر شو
یو لاکهه روپۍ خراج یې اداکړو. رنجیت سنګهه د هزاره
پښتنو په عدم تعاون یار محمّد خان ته خاص خلعت بخښش کړو.
۱۸۲۵ء کښې یوسفزئی قبیلې د دربند قلعه محاصره
کړه او په سکهه سپاهیانو یې راشن بند کړو. خو د رنجیت سنګهه
په رارسید و پښتنو د قلعه محاصره پرېښوده او فرار شول
محمد حیات خان د هزاره په حقله لیکی:

"سکهوں کے قبضہ سے پہلے ہزارہ شامل سلطنت افغانستان
مسلمانوں کے قبضہ میں تھا - ۱۸۴۶ء میں ہمراہِ ملک کشمیر مہاراجہ
گلاب سنگھ کے ہاتھ فروخت ہوا - جب اُس سے بندوبست
نہ ہو سکا - تو پھر شامل دربار لاہور کیا گیا - اِس ملک
کے پہاڑی لوگ ایسے جنگجو نہیں ہیں جیسے دریائے سندھ
کے مغربی پہاڑوں کے لوگ خودسر اور دلاور ہیں "

(حیات افغانی صک)

## د نوښار جنګ

دسمبر ۱۸۲۳ء وو چې رنجیت سنګهه ته خبر راورسید و
چې محمّد عظیم خان د اټک قلعه اخستو ته لبوالہ دے او په تهوله

علاقه یې د اشتهار په ذریعه پښتانه جهادته رابارولې دی
"سکھ تو آدمی بہ طمع مال مارتے اور قتل کرتے تھے۔ اور افغان
بہ نیت ثواب کے مارڈالتے تھے" [1]

د پښتونشل زره لښکر د محمد عظیم خان د جهاد په دعوت
راغونډ شول. د هرې قبیلې خلق (د قاضی عطاء الله مطابق
صرف یوسفزی) د دریائې کابل په شمالی غاړه د اټک په
لور را روان شول. خیال ئې وو چې د صوابي په لار
دریائې سِند ه نه پورې وُزی او د اټک قلعه محاصره
کړی. محمد عظیم خان هم ئې لوئې لښکر او جنګی سازوسامان تر
اټک پلؤ نوښار ته راورسېد و. عوامی او شاهی لښکو د یو
خاص منصوبے لاندې لکه چې د کابل سېند نیمی او کس ارخ ته
پراته وو. خو دوئی لـه نوښار کښې پراو وو چې هری سِنګه
نلوه جهانګیرے قبضه کړو او رنجیت سِنګه هم پنځلس زره
لښکر څخه دریائې سِنده نه راپورې وتو او اکوړه ختک ته
راورسېد و.

رنجیت سنګه د لته خپل لښکر په دریو برخو کښې تقسیم
کړو. یوه حصه دریائې لنډ انه شمالا د پهولا سِنګه تحت بله
غاړه پورې وتله او پښتنو قبائل څخه یې جنګ آغاز کړو

---

[1] "تاریخ پنجاب، کھنیہ لعل ص ۱۳۷".

دویمه ډله د سردار هری سنګه نلوه. خیبر ل الارډ (د کهوړا سوار فوځ مشر) او جنرل ونتوره (د پیادل فوځ سربراه) تحت وه او د دوی کار محمد عظیم خان د پښتنو قبائل امداد نه راایسارول وو. دریمه برخه د رنجیت سنګه تحت د ضرورت د وخت،، ریزرو،، لښکر وو.

د پهولا سنګه تحت سکهانو په ۱۴ مارچ ۱۸۲۳ء د جنګ آغاز وکړو. خو پښتانه د ترکۍ په لوړه ډېرې پراته وو. د پښتنو لښکر دغه وخت د عظیم خان ورارهٔ محمد زمان خان صادق خان بن فیروز خان ختک او پیرزاده محمد اکبر خان تحت وو. دوی د پهولا سنګه په سکه لښکر داسې بې وارهٔ ورپېوتل چې د سکهانو پښې وخوځیدې او شکست ئې وخوړو کافي سکهان قتل شول. عن چې سردار پهولا سنګه هم قتل شو. باقي پاتې سکهان فرار شول. پښتنو ئې تعاقب جاری وساتهٔ خو دې دوران کښې سکه توپ خانې نه بر دسته ګوله باری شروع کړه. پښتانهٔ په توپ خانه هم حمله آور شول په سلګونو شهیدان شول خو شکست ئې وخوړو په دویمه ورځ پیرزاده محمد اکبر پښتانهٔ دوباره راغونډ کړل خو محمد عظیم خان د میدان جنګ نه وتښتید او د پښتنو حوصلې پست شوې. د پښتنو د حیرت انتها وه چې یو خوا دوئ د سکه په ګوله باری شهیدان کیدل او بل خوا د

مُحمّد عظیم خان توپ خانه بېځي خاموش وه. او پښتون
شاهي لښکر (د قاضي عطاء الله مرحوم مطابق بشمول پېښور
قبائل یعنی خلیل، مومند، داؤدزي) محض تماش بین وو.
وائي چې محمّد عظیم خان څو واره د پښتنو په امداد
د دریائي لنډاانه د پورې وتو هڅه وُکړه خو د هغه
ټول کوششن هرې سِنګه نلوه، جنرل ونتوره او جنرل
ایلارډ ناکام کړو. محمّد عظیم خان د مېچنئي په لار جلال
آباد ته وُتښتېده و. یار محمّد خان خراج وُمنو دوا او پېښور
ورته بېرته حواله شو.
د دې جنګ د شکست اصلي وجوهات دا وو.
۱. د دریائي لنډا دواړه غاړه عوامي او شاهي
لښکر د یو بل متوازي پراته وو. اندازه ده
چې د منصوبې مطابق به لا زمي چې د یو اړخ لښکر
سِکهه ټخم برسرِ پیکار وي. نو د بل اړخ لښکر به د
دوئ په امداد د هغوئ د شاهي نه راتاوېدل.
دغه طریقه کار نه پښتانه غافل شول. او د
رنجیت سِنګه چال کامیاب شو چې هغه یو دسته
غیرمنظم پښتون لښکر څخه برسرِ پیکار وُساتله
او یو لوئ لښکر یې د محمّد عظیم خان د منظم شاهي
لښکر مخکښې مضبوط دیوال وُساته.

۲: محمد عظیم خان له پکار وو چې سکهـ لښکر تر دریابې لنډا نه پورې وتې نه وې.

۳: محمد عظیم خان له پکار وو چې د پښتنو جنګ یا د شکست په موقعه ده هم جنګ شروع کړې وې.
میدان نه د جنګ وجدال فرار د هغه په حماقت دلالت کوی.

۴: محمد عظیم خان د خپل ناسکه ورونو غدارانو پښور یار محمد خان. سلطان محمد خان، پیر محمد خان په مشوره عمل نه کولې.

۵: د بېکښې هغې شک نشته چې د دې جنګ د شکست اصلی ذمه دار محمد عظیم خان دې خو د محمد عظیم خان یو ناساپې مرګ ښائی چې د ناکامی یا د خپلو ورونو عدم تعاون احساس په سبب هغه یو ناساپې وفات شو.

۶: د رنجیت سنګهـ د پېښور د قبضې نه وروستو یار محمد خان نیم باج ګذار حاکم پښور ساتل هم شکوک پیدا کوی.

۷: د کهنیه لال مطابق:
" دې جنګ کښې درې زره پښتانه او دوه نیم زره سکهان قتل شول.

۸: دَدې شکست یو غټ سبب کهٔ دَ پښتنو کمزور قیادت وو نو بل اَړخ دَ جنرل ونتوره (دَ اِټلی باشنده) او جنرل ایلارډ (دَ فرانس باشنده) اَعلیٰ قیادت وو چې ۱۸۲۲ء کښې دَ مهاراجه ملازمان شول او ۱۸۲۳ء کښې دَ هغوئي دَ قیادت تحت پېښور فتح شو.

## یو وَضاحت

قاضی عطاء الله خان مرحوم او روشن خان مرحوم[1] دَ تَرکو په ډېرې دَ پښتون قبائل اجتماع او جنګ محض یوسفزو قبائلو ته مخصوص کوی او دَ نور قبائلو ذکر نهٔ کوی دَ هغوئي دَ خصوصی ذکر سبب غالبًا دَ مونږ ی نومې شاعر هغه چاربیته ښکاری چې دَ چېل یوسفزی سردارانو دَ شهادت په ذکر کښې یې تحریر کوی۔ حقیقت دا دے چې په دې جنګ کښې تقریبًا دَ پښتنو ټولو قبائلو شریک وو عن چې خټک قبیله هُم موجوده وَه او دَ هغوئ دوه نامتو سرداران فیروز خان خټک او نوروز خان خټک په دې جنګ کښې شهیدان شول۔

دې جنګ کښې خلیل مومند که یو اړخ دَ یار محمد خان دَ شاهي ښکر برخه وَه نو بل اَړخ دَ جهاد په اشتهار او دعوت

---

[1] دَ پښتنو تاریخ جلد اول صفحه ۲۹ او تاریخ یوسفزئی صفحه ۲۳۵۔

د دوئ پولوټي رضاکار تعداد د سکهـ خلاف جنګ کښې برابر
شریک وو او د شکست په نتیجه کښې چې کوم تاوان او تباهي
په دوئ راغله هغه د نور قبائل په قسمت دومره نۀ وه.

د دې جنګ خاکه کهنیه لعل داسې راکاږي:

"ایک افغان چالاک نے سب سے آگے بڑھکر سنگور سہائے
سنگھ کی طرف قرابینی سر کی۔ اور اُس کی گولی سنگور سہائے سنگھ
کے سر میں لگی جس سے اُس کا مغز پاش پاش ہوگیا اور
گھوڑے سے گر کر مر گیا۔ دوسرے افغان نے مہان سنگھ
کی طرف آکر پشت کی طرف سے خنجر مارا جس سے وہ سخت زخمی
ہوا۔ جب دونوں افسروں کا یہ حال ہوا۔ تو سکھوں کے
پاؤں اُکھڑ گئے اور بے اختیار ہو کر بھاگے۔ افغانوں نے
سکھوں کا تعاقب کیا اور پیچھے سے مل کر بے حساب قتل کر ڈالے
اور اُنہی کے تعاقب میں افغانی فوج پہاڑی سے اُتر کر میدان
تک آگئی اس موقع پر سکھوں کی فوج بہ سرکردگی پھولا سنگھ
اکالیہ کی کھڑی تھی اُنہوں نے مستعد ہو کر افغانوں پر حملہ کیا
اور افغان بڑے چست ہو کر اُن پر گرے اور آدھ گھنٹہ تک
فریقین میں خوب تلوار چلی۔ آخر پھولا سنگھ قتل ہوا اور
اُس کے فوج کے پاؤں بھی پیچھے کو ہٹے۔ افغانوں نے
زیادہ زور ڈال دیا اور قریب دو سو آدمی کو قتل کر دیا۔
پھر تو خالصہ جی میدان میں نہ ٹھہرے، پشت دکھا کر بھاگے

ایسا حال جب مہاراجہ نے دیکھا۔ کمال تشویش میں پڑا۔ مگر وہ کب رُک سکتے تھے کیونکہ پیچھے اُن کے افغان مار مار کرتے ہوئے چلے آتے تھے۔ ناچار مہاراجہ نے نجیبوں کی چاروں پلٹنوں کو ایک طرف اور دوسری طرف بھر مار پلٹن کو مامور کیا کہ بھاگتوں کے راستے جا کر روکیں۔ اور اگر نہ رُکیں تو گولوں سے اُڑا دیں۔ چنانچہ وہ فوج دو طرف سے اُن کی سدِّ راہ ہوئی اور بھاگنے والوں کو اپنے پاس پناہ دی افغانوں نے جب یہ دیکھا تو آگے نہ بڑھے وہیں کھڑے رہ گئے،، [1]

تاریخ ضلع پشاور لکھی :

"اس لڑائی میں مہاراجہ رنجیت سنگھ اپنی طرف خود مُبَر بہ عساکر تھا۔ اور دوسری طرف سے سردار محمد عظیم خان برادرِ کلاں سردار دوست محمد خان علاقہ دار کابل بہ ہمراہی بہت سی فوج سوار و پیادہ ملازمین و غیر ملازمین نوشہرہ چوہان میں جنوبی سمت دریائے لنڈہ پر مستعد پیکار تھا۔ اور علاوہ اُن کے ملکیہ لوگ مجاہدین الطرف سواد و باجوڑ و یوسف زئی و پکھلی و ہزارہ وغیرہ سے ایک جمع غفیر جمع ہو کر آئے تھے جو نوشہرہ کلاں میں فروکش

---

[1] تاریخ پنجاب صـ ۴۰۶

۱۸۲۱ء/۱۲۳۸ھ یہ معرکہ واقع ہوا۔ افواج سکھاں موضع پیر سباک میں قیام پذیر تھی۔ بتاریخ ۱۲ مارچ علی الصباح سکھوں نے موضع پیر سباک سے چڑھائی کر کے پہاڑی ترکی پر مجاہدین سے مقابلہ کیا۔ بہت سا کشت و خون سرزد ہوا اور اکثر مجاہدین شہید ہوئے اور بہت سے سکھ بھی زیرِ تیغ بے دریغ آئے۔ آخر الامر باقی ماندہ ملکیہ لوگ بہ باعثِ عدم شمول لشکر سردار محمد عظیم خان کے جو دریا پار سے بسبب عدم موجودگی کشتیوں کے کہ جن کی بہم رسانی کے واسطے ہشت نگر و داؤدزئی تک سعی بلیغ عمل میں آئی، عبور نہ کر سکا، مایوس الحال ہو کر بھاگ نکلے اور اُس طرف سردار موصوف جو لشکر انواب لڑائی کر رہا تھا۔ ہزیمت غزات ملاحظہ کر کے پسپا ہو گئے اور کابل میں پہنچ کر بہ خوف سرزنش ابنائے جنس اور علماء اہل اسلام کے زہر چاٹ کر قاتل النفس ہوا،،[1]

انگریز مؤرخ میک گریگر لیکی:

"غازیوں میں سے صرف چند کے پاس ڈھالیں تلواریں تھیں۔ باقی سب آسلحہ آتش بار اور تیغ و نیام کی جگہ پتھر ہاتھ میں رکھتے اور انہی سے لڑتے تھے۔ غازیوں نے سخت

---

[1] تاریخ ضلع پشاور گوپال داس صفحہ ۳۰۸۔

حملہ مہاراجہ کی فوج پر کیا۔ سکھ فوج بھاگ نکلی لیکن نجیت سنگھ
نے بڑی عقلمندی سے اُسے پھر جمع کیا۔ اور مقابلہ کیا۔ طرفین
سے بہت سے آدمی مارے گئے۔ سکھوں کی طرف سے
پھولا سنگھ اکالی جو ہاتھی پر بیٹھا ہوا لڑ رہا تھا، مارا
گیا۔ سردار کرم سنگھ و سردار گلاب سنگھ گورکھہ پلٹنوں کے سردار اور
بہت سے اور سردار قتل ہوئے غازی لوگ بڑی
شجاعت و دلیری سے لڑے۔ لیکن اُن کے پیچھے مدد
کو کچھ نہ تھا۔ اور سکھوں کی توپوں کے گولے اُن پر
بوچھاڑ کر کے ان کے کام تمام کئے دیتے تھے جو صف
غازیوں کے آگے آتی گولوں کی مار سے جل بھن جاتی۔
دس ہزار افغان اس جنگ میں مارے گئے۔ محمد عظیم خان یہ
حال دیکھ کر بیدل ہو گیا اور دس ہزار آدمیوں کیساتھ
اُس نے راہِ فرار اختیار کی۔ اس فتح کے بعد مہاراجہ
قلعہ ہشتنگر کو گیا اور اُسے اپنے قبضہ میں کر کے داخل
شہر پشاور ہوا" [1]

قاضی عطاءاللہ لیکی:

---

[1] تاریخ پنجاب از سید محمد لطیف ص ۲۷-۱۲۶

ټول پښتانه د دې مشترکه خطرې د مقابلې د پاره
په ډېر اخلاص را یو ځائې شوی وو. مګر چونکه د یوسفزو
د ټبر ټولو څوک خاص سالارنه وو. نه هغوئ ته د باقاعده
جنګ قواعد چا ښودلی وو او نه هغوئ سره
توپ خانه وه- د سکهانو فوځ بالکل منظم او د یورپینو
افسرانو د کمان لاندې وو.

د پښتنو تاریخ جلد اول ص ۲۳۹

د رنجیت سنګه بیان دے:

The Raja speaking of the Afghans as soldiers said " They are very hardy and obstinate and quite ignorant of discipline. It is their custom in battle to run on their enemy in the most bold and fearless manner, if the attack proceeds well, if not they retreat with precipitation and never rally. "They are" he continued "very stubborn. In the action between my troops and Fateh Khan near Peshawar they rushed on my battalions with such Impetuosity as to seize the muskets of the men. The fights with swords are perfectly callous and think that dying in Conflict with the Siks, is a sure road to Heaven"1

ترجمه ,, د پښتنو په خقله راجه وئیل چې دوئ شمشیر
زن دی- ټکره او سرکش دی خو منظم نه دی. د دوئ

---

1- The Punjab a sovereign state by Gulshan Lal Chopra P-307

دَستور دے چې دَجنګ دوران که حمله
کامیابه وی نو په دُښمنی سَه په نوره ورځې
اوکه داسې نهٔ وی نو بیا د پښتنو خته
بېرته جار وځی. راجه وئیل چې دوئی تکړه دی
دوئی پېښور ته نژدې نه ما او فتح خان د
سیکو تو سره جنګ کښې نه ما په فوځی دسته
د ډېرې تېرۍ نه حمله وکړه چې نه ما خلقو
نه سلحه واخلی. حقیقت دا دے چې دوئی
ډېر په نې رحمی نه تورې وهی او یقینی لرې
چې سِکهانو نه جنګ کښې مړینه جنت ته
تلل دی۔"

ګوپال داس د پیر سباک په مقام د پهولا سنګهه د
سمادی په حقله لیکی:

"سال میں دو دفعہ یہاں میلہ ہوتا ہے۔ ایک
پہلی ماہ بساکھ کو میلہ لگتا ہے دوسرا دوسہرہ میں
آدمی قرب وجوار کے جمع ہوتے ہیں. کوئی انتظام
پولیس کا نہیں ہوتا اور نہ کچھ آمدنی ہوتی ہے. نام متولی
گدی نشین جودسنگھ ہے۔"[1]

---

[1] تاریخ ضلع پشاور گوپال داس ص ۳۶۹

د پېښور سباک د علاقې چه کېر د انګرېزو سرکار په
دوړ حکومت هم د پهولا سنګه د سهادره د پاره
وقف دو.

په هر حال پښتنو شکست وخوړو. په زرګونو قتل
شول او رنجیت سنګه ډېر په شان و شوکت په ۱۷ مارچ
۱۸۲۳ ء پېښور کښې داخل شو. سکه لښکرو پېښور خواوشا
د خلیل مومند کلی لوټ تالان کړل. کورونه یې وسوزول
باغونه یې ورېښل. او ېو داسې ناتارۍ کړ کړو چې
خلیل مومند غرونو ته فرار شول. او چې حالات سم شول
نو بیرته خپل ځایونو ته راکوز شول او سر د دباره ئې
کورونه آباد کړل. مونږ چې نن د خلیل مومند په علاقه
کوم کښې شمېر د شهیدانو قبرونه وینو. د دوئ زیات
تعداد د هغه شهیدانو دے چا چې سکه خخه په جنګ کښې
خپل سرونه وشیندل. او دائمي ژوندئې اختیار کړو.

وائي چې د جنګ نوښار په نتیجه کښې سکهان په پېښور
قابض شول نو دوئ خپل فوځي کېمپ د سربند خواوشا
د دریائي باړه په اوچه خشکه ناله کښې ولګوه. آفریدی
چې د پښه خبر شول. نو هغوئ ېرې د خلیل مومند سېلابه
راوشلولې او بهٔ د دوئ په کېمپونو ورغلې. دوئ سخت
اوتر او پرېشان شول. آفریدو د دوئ په کېمپونو حمله وکړه

او د ہر مال دولت ئې تري لوټ او تالان کړو.

رنجیت سنګه تر ۲۲ اپریل ۱۸۲۳ء پېښور کښې ایسار وو یار محمد خان ئې خدمت کښې حاضر شو یو لکه روپیه ئې خراج ادا کړو او پنځوس آسونه علاوه ئې کوهیار نومي آس هم مهاراجه ته حواله کړو.

## د لیلی قیصه

۱۸۲۸ء وو چې رنجیت سنګه ته خبر راو رسید وچې د پېښور حاکم یار محمد خان څخه ښائسته سپینه آسپه لیلی نومې ده چې د دې آسپې د حصول نه پوازې د ایران بادشاه فتح علی شاه قاچاری ارماني دے بلکه د شاه ایران په وساطت ئې شاه روم هم خواستګار دے. رنجیت سنګه د یو قاصد په وساطت د دې آسپې د حصول خواهش ظاهر کړو خو یار محمد خان سکوت اِنکاری شو او وې ویل چې په تېر جنګ کښې لیلی مړه شوې ده. رنجیت سنګه د هغه په انکار سخت غصه شو او د سردار بده سنګه تحت یې بو لوئ لښکر د پېښور لور روان کړو. خو یار محمد خان غرونو پلو فرار شو او بده سنګه ناکام لاهور ته ستون شو.

رنجیت سنګه چې د بده سنګه ناکامه نه خبر شو نو شهزاده کهړک سنګه ئې په دې مهم مامور کړو. یار محمد خان غرونو پلو فرار شو. او پېښور یې د سکه دستي بربریت او تباهه

ته خوشې پرېښودو. او هغوئ اتهٔ میاشتې دلته ایسار وچې
آخېرکار سلطان محمد خان (برادر یار محمد خان) دَیوې بلې سنګلې
آسپې "شیرین" په حواله کولو صلاح کړل او سکهانو
د پېښور محاصره پرېښوده. یار محمد خان خپل دولس کلن
ته ویې محمد حسین خان د یرغمال (ربوټګا) په طور سکه دربار
ته حواله کړو. ۲۵ آسونه، سل منه د پېښور اعلیٰ قسم
ورېژې او نور ډېر سوغات یې سکه دربار ته واستول
د رنجیت سنګه په دربار کښې د هغهٔ یو معالج ډاکټر
"مرے" وائی:

" The Raja told me , he did not believe that the horse was dead, that Yar Muhammad was the greatest " drogh-go " ( دروغ گو ), he ever met with and "yet" he added "what a " bewaqoof " ( بیوقوف ) he is, he refuses to let me have this horse but does not scruple to send me his son, does he value his horse more than his son"

The Punjab A Sovereign State
By
Gulshan Lal Chopra page-281

ترجمه: ماته راجه ووې چې یقین مې نشته چې

اَسپه مړه ده ځکه چې یار محمد خان د پېښور لوئي
دروغژن دے هغه چې کله ما ویني نو همد غسې
دائي وئي ورته وکوره دے څومره بېوقوف دے
چې اسپه خومانه نه راکوي ولې د خپل زوئي په
واسطه پوشک نه کوي هغه خپل زوئي نه خپل
اَس قیمتي گنړهي۔"

"Laila" in the possession of the ruler of Peshawar Yar Muhammad Khan and others of his tribe have sworn by the Quran that the horse is dead and put their seals to a paper to that effect. Yet I have good reason to believe that "Laila" is alive and that they have sworn among each other, not to let me have the horse."

The Punjab A Sovereign State
By
Gulshan Lal Chopra page- 304

ترجمه: " د پېښور حکمران یار محمد خان څخه
"لیلی" ده او د هغه د قبیلې خلقو قسمونه خوړل
چې دغه اسپه مړه ده او په کاغذ یې مهرونه
ولګول. خو زما پوخ یقین دے چې لیلی ژوندۍ

ده او دوئ نښلو کښې قسمونه خوړلي دي چې ماته
بېبې حواله نه کړي.

۱۸۲۹ء ووچې شهزاده شېر سنګه. جنرل ایلارډ
(فرانس نژاد) او جنرل ونتوره (اطالوی) دَ سید احمد شاه
بریلوی خلاف پېښور ته راورسېدل. دلته پته ولګېده
چې یار محمد خان څخه اوس هم لیلئ موجود ده.

دَ رنجیت سنګه چې دَ لیلئ موجودګۍ نه خبر شو نو
۱۸۳۰ء کښې ئې دَ جنرل ونتوره تحت یو بل لښکر راولېږلو
خو دَ دغه لښکر رارسېدو نه اګاهو یار محمد خان، سیّد
احمد بریلوی څخه جنګ کښې قتل وو او سلطان محمد خان
دَ سکهانو دَ خوشنودۍ او رضامندۍ حاصلولو په غرض
لیلئ جنرل ونتوره ته حواله کړه او جنرل ونتوره ئې
په شپاتیسم نوازشاتو سرفراز کړو. رنجیت سنګه دَ دې
اَسپې په لیدو ډېر زیات خوشحال شو.

دَ "لیلئ" شبیه اُو ُوچ مجسّم شکل دَ لاهور قلعه
کښې سپاهیانو دَ پاره اوس هُم محفوظ دے. دا هغه
لیلئ ده چې دَ دې په وصولیابۍ دَ رنجیت سنګه
زرګونو پښتنو وینې بهیولی دی

دا هغه لیلئ ده چې دَ دې په عوض
یار محمد خان دَ پېښور حاکمیت پرېښودو وتښتېدم و لیلئ

یې رنجیت سنګه ته ته حواله کوله. دا هغه لیکلي دي چې
دوی په عوض سلطان محمد خان د پېښور نظامت دوباره
حاصل کړو.

## د شاه شجاع یو ناکام کوشش

جنوري ۱۸۳۳ء وو چې شاه شجاع یو ځل بیا د تخت
افغانستان بېرته قبضې اراده وکړه. سِنده ته راورسېد او
دلته جنوري ۱۸۳۴ء کښې د بلوچ نژاد امیران سِنده لښکر
څخه جنګ وشو. خو د امیران سِنده یو لوئ لښکر د
شاه شجاع د یو رسېږ په طرز پوئي ورکوټي جنګیالو
لښکر نه شکست وخوړو. امیران سِنده کافي خراج
ادا کړو. او شاه شجاع دوه ورپسې ترې لښکر څخه قندهار
محاصره کړو. پښتنو شاه شجاع څخه جنګ کول نه غوښتل
خو بقول کنهیالعل[1]:

"دوست محمد خان د نواست او دوراندیشي
نه کار واخیستو. مشهوره یې کړه چې شاه
شجاع د انګریز په علت او سازش د کابل تخت
قبضه کول او کوي چې د مسلمانان عیسائي د رول
غواړي په دې اساس د هغه خلاف جنګ
عیني جهاد دے او د دین اسلام په حمایت کښې داخل دے"

[1] تاریخ پنجاب صـ ۳۴۸

پښتنو چې دَ جهاد او غزا خبره واورېده نو جنګ ته
تيار شول. دَ کندل خان حاکم قندهار او دوست محمد خان
مشترکه لښکر شاه شجاع ته شکست ورکړو او شاه شجاع مارچ
۱۸۳۵ء کښې بېرته لوديانه کښې انګرېز سرکار ته په پناه
اخستو مجبور شو.

## کنور نونهال سِنګه

رنجيت سِنګه چې دَ شاه شجاع دَ حملې او دوست محمد خان
کابل کښې غير موجودګۍ نه خبر شو نو دَ هرى سنګه دَ قيادت
تحت ۱۸۳۵ء کښې يو لوئې سِنکى ټاڼ دَ پېښور په لور راوليږلو
دَ پېښور دَ شيخم سردارانو هم هرى سنګه نلوه ته خط وکتابت
وو. دَ هِند وانو مشران ئې هم ملګرى وو. هرى سِنګه
دَ پېښور حالات او فضا صفا وليده. آټک ته خه دريائې سند
نه راپورې وتو. سُلطان محمد خان هيبت واخستو او مېچنۍ پلو
وتښتېدو. سِکهانو پېښور قبضه کړو او رنجيت سِنګه خپل سِکه
رياست کښې شامل کړو. خپل نمسے کنور نونهال سنګه پسر
شهزاده کهړک سِنګه او لئے سِکه کورنر او هرى سنګه نلوه
سپه سالار مقرر شو. بيا خهٔ وو:

"مسلمان لوگ بہ جہر اذان دینے سے منع کئے جاتے تھے اور
گاؤ کشی خاص شہر اپنا ورمیں بند تھی۔ اگر کوئی اس قسم
کا جرم کرتا تھا۔ تو اس کو سخت سزا دی جاتی تھی۔ یعنی

تاراج خانه یا قطع عضو[1]

دوست محمد خان چې قندهار ته راستون شو نو د خیبر غرونو ته راکوز شو مئی ۱۸۳۵ء کښې سیکهان باړه ته راورسېدو. د پېښور زرګونه خلیل مومند یې مرستیال شول او نور د پښتانه یې هم په امداد تیار شول. [illegible]

راغلهٔ ځوانان ورته ډېره شو په سیکهانو باندې
وارې خطا وو ورتلې نه شو په سکهانو باندې

- - - - - - - - - - - - - - - - - - - -

داپه غزا یې راووت خلق د پښتنو نه
د یوسفزو د مومند زوړ د اشتغریا یې
د یوسفزو د مهمند نه او خور شوې نه وړ دے نه
رنجیت ویرېږي د امیر د تورې غږ دے نه

سکهانو چې د پښتنو جوش وخروش وکتو نو هغوی د جنګ په ځای فراست نه کار واخستو. دوست محمد خان او سلطان محمد خان تخه یې د فقیر عزیز الدین[2] (وفات ۳ دسمبر ۱۸۴۵ء) په ذریعه د امن او صلح صفائی خبرې شروع کړې او د دغه امن مذاکرات دوران یې داسې حربه استعمال کړه.

---

[1] تاریخ پښاور. گوپال داس ص ۳۸۳

[2] د دغه دوه رونړه نور فقیر نور الدین او فقیر امام دین.

چې سلطان محمد خان ئې خپل ورور دوست محمد خان نه جدا کړو او خپل لښکر زره لښکر څخه بیل شو. دوست محمد خان چې د هغه غدارۍ ولیده نو د نیمې شپې په خاموشۍ کښې ئې نا په مات مایوسه خپل ټول لښکر څخه کابل ته بېرته ستون شو. رنجیت سنګه چې د پښتنو او د دوست محمد خان د لښکر د اجتماع نه خبر شو نو ډېر په تېزۍ څخه کتو ته راورسیدو او دلته ډېره شو. خو پښتون لښکر ډېر زر منتشر شو او دوست محمد خان کابل ته واپس شو. رنجیت سنګه د دوست محمد خان په واپسۍ پېښور ښار کښې داخل شو. د رنجیت سنګه په حکم هری سنګه نلوه د جمرود په مقام ۱۸۳۶-۳۷ء دوران قلعۀ جمرود د تعمیر کړه. سلطان محمد خان د خپلې وفادارۍ د اظهار په توګه د رنجیت سنګه خدمت کښې حاضر شو.

"سردار سلطان محمد خان جب حاضر خدمت مہاراجہ ہوا تو مہاراجہ اس پر ناراض ہوا اور حاضری کا حکم نہ دیا۔ کنور نونہال سنگھ نے اُس کی تعریف اور سفارش کی اور کہا کہ سردار سلطان محمد خان نے برخلاف اپنے حقیقی بھائی سردار دوست محمد خان کے شہر پشاور پر ہمارا قبضہ کرا دیا ہے۔ اس بات پر اُس کا بھائی اُس کا جانی دشمن بن گیا ہے۔ اب مہاراجہ بھی اُس کی پرورش نہ کریں گے۔ تو یہ

بیچارہ کہاں جائے گا۔ اُس کی پرورش بہرحال واجب ہے
مہاراجہ کو یہ تقریر کنور نونہال سنگھ کی نہایت پسند
آئی اور سلطان محمد خان کو روبرو آنے کی اجازت دی۔[1]

د کنور نونهال سنګه په سفارش سلطان محمد خان د سکه سرکار د کوهاټ جاګیردار مقرر شو. رنجیت سنګه د کم عمر نونهال سنګه مشیر ګلاب سنګه مقرر کړو۔ خو هغه څو ورځې پس د نارېۀ د بیمارۍ په وجه تبدیل شو او ابو یطویله مشیرِ خاص مقرر شو.

د سلطان محمد خان د غدارۍ باوجود، دوست محمد خان مایوس نۀ شو بلکه هغۀ اپریل ۱۸۳۷ء کښې د حاجي خان کاکړ تحت یو لوئ لښکر د سکه خلاف راولیږلو هغۀ په جمرود حمله وکړه۔ دوه ورځې جنګ نه پس هری سنګه نلوه شکست وخوړو نو د مزید کومک په راړسېدو هری سنګه جنګ ته دوام ورکړو. حاجي خان کاکړ ته هُم د اکبر خان پسرِ دوست محمد خان تحت د پښتنو یو لوئ لښکر په ۳۰ اپریل ۱۸۳۷ء په کومک راورسېدو. هری سنګه نلوه زبردست مزاحمت وکړو. پښتنو شکست وخوړو او تو ار شول هری سنګه نلوه پې ترعلی مسجد تعاقب وکړو. د ماښام وخت وو تیاره خوره وه پښتانه بېرته

---

[1] تاریخ پنجاب کنهیه لعل ص ۳۵۵

داوکړ څپل اوبه سکهانو یې حمله وکړه. ډیر سکهان قتل شول. هری[1] سنګه د ټوپک په ګولی په سینه ولګیدو او سخت زخمي شو. قلعه ته وړ رسولی شو خو دغلته مړ شو

"رنجیت سنگھ کو اس بہادر کی وفات سے اس قدر رنج ہوا کہ وہ اپنے درباریوں کی روبرو اس کی الم وفات پہ رو دیا"[2]

His ( HariSing ) name to this day is used as a logey with which to frighten childern and with " Hari Raghe" ( هری راغے ) the Mohmand mother is said even now to still her crying child"

" Gazeteer District Peshawar 1930 page-51"

ترجمه : د هری سنګه نوم ترننه د یو "بو" یا "بلا" په حیث مستعمل دے چې ما شوم زاړی نو د مومند تو میندې چې خپل بچی "هری راغے" په الفاظ ویره وی"

رنجیت سنګه چې دې واقعات نه خبر شو نو دیر په تنګ پیښور ته راورسید او په ۱۸۳۸ء راسې د پیښور نو جدا رابوبیطویله

Paolo di Bartolomeo Avitabile

یې د پیښور ګورنر ۱۸۳۷ء تا ۱۸۴۲ء مقرر کړو. د اټلی دا یا ښندوری د نپولین فوځ کښې نوکر وو. دغه څائې نه ایران ته راغلو.

---

[1] د هری سنګه تعلق شودر ذات څخه وو "امپیریل رول پنجاب از رائل دبوزمبونی"

[2] تاریخ پنجاب - سید محمد لطیف ص۵۰۲

شیر کاله د ایران د بادشاه نوکر وو. ۱۸۲۷ء کښې لاهور ته راورسید
او د رنجیت سنګه نوکر شو.

ابوطبیله د درّه کوهاټ جانه خوړ او سوزولو خوا دی بوری کښې یې
پښتون قبائل ته شکست ورکړو. دسمبر ۱۸۴۲ء کښې چې ابو
طبیله د افغانستان په لور فرار شو نو دغه ځائې ته انهلی ورسید و
هغهٔ تخته پښتوس نه ره پونده ه دولت وو چې د پېښور د خلقو نه یې
په ظلم ناور رانغوند کړې وو. تایکلر تخته جوخت یې یو عالی شان
محل تعمیر کړو. خو د شرابو د نهایات استعمال په وجه زد مړ شو.

مهاراجه شیر سنګه جنوری ۱۸۴۳ء کښې راجه تیجا سنګه د
پېښور ناظمِ اعلیٰ مقرر کړو. څوک چې د هری سنګه نلوه د
قتل او ابوطبیله نه وروسته ۳۷-۱۸۳۶ء کښې د پېښور عارضی
طور فنو جدار وو. راجه تیجا سنګه ربیع ۱۸۴۵ء پورې د
پېښور حکمران وو خو ستمبر ۱۸۴۵ء کښې چې چتر سنګه د
اټک قلعه قبضه کړه او پېشاور سنګه پسر رنجیت سنګه ئې قتل
کړو. نو هغهٔ خپل زوئې شیر سنګه اتاری واله د پېښور ناظم
مقرر کړو ۱۸۴۶ء تا ۱۸۴۸ء سردار شیر سنګه ولدِ چتر سنګه د
پېښور ناظمِ اعلیٰ او ۱۸۴۸ء کښې یې جارج لارنس اسسټنټ ریذیډنټ
وو. بقولِ گوپال داس ؎

سکھ سرکار کی عملداری ۱۸۳۴ء تا ۱۸۴۸ء قائم رہا. اوائل
عملداری ۱۸۳۴ء تا ۱۸۳۶ء میں کنور نونہال سنگھ اور

> سردار ہری سنگھ نلوہ سپہ سالار حاکم ضلع پشاور رہے
> اور پھر ۱۸۳۷ء میں راجہ تیجا سنگھ حاکم رہا۔ اور پھر شروع
> ۱۸۳۸ء تا ۱۸۴۲ء ابی طوبیلہ صاحب حاکم و ناظم رہا۔
> ۱۸۴۳ء تا ۱۸۴۵ء پھر راجہ تیجا سنگھ حاکم رہا اور ۱۸۴۶ء
> تا ۱۸۴۹ء سردار شیر سنگھ ولد چتر سنگھ اٹاری وال کی
> حکومت رہی۔ ۱۸۴۹ء میں عملداری انگریزی ہوئی [1]

دسمبر ۱۸۴۸ء وو چې سردار شیر سنګه ولد چتر سنګه
د انګریز خلاف په جنګ وو. دوست محمد خان پېښور ته راورسید
او تر دریابې سنده ورسید و. سکهانو ځکه ئې د انګریز خلاف
د خپل امداد معاهده وکړه. د شیر سنګه او د نوجوان اکرم خان
پسر امیر دوست محمد خان پینځه زره امدادی پښتون لښکر
په ۲۷ فروری ۱۸۴۹ء د ګجرات په مقام شکست وخوړو. امیر
دوست محمد خان را وتښتید و. انګریزې تر اټک تعاقب وکړو
خو پښتو د اټک په مقام تمولې کښتۍ وسوزولې او د بې په
تنګره د خیبر په لار کابل ته لاړل او پېښور ئې انګریز ته
نوشې پرېښودو. وائې چې امیر دوست محمد خان که په دغه
موقعه د فراستانه کار اخستې وې. محض تماشبین پاتې وې او د سکه په
شکست سر دوباره په دې علاقه قابض وې نو شاید چې انګریز

---

[1] تاریخ ضلع پشاور صـ ۳۷۵

سرکار دریائې سِندھ نه راپورې وتے نهٔ وے.

د رنجیت سِنګھ په پېښور قبضه کۀ څۀ هُم څو کاله وه او د راجه جے پال او انند پال نه اَتۀ سوه کاله پس د جهلم نه راپورته په درومبی ځل د هندوستان یو غیر مُسلم په دې علاقه حکمران شو. خو هغۀ کۀ یو خوا د پنجاب خوره وره علاقه په اول ځل د یو منظم حکومت او بند و بست تحت راوسته. نو بل خوا یې پښتانۀ په دوو حصو کښې داسې تقسیم کړل چې ترننه یو نۀ شول.

---

# سیّد احمد شهید بریلوی

تا سو کوردې چې ۱۸۰۳ء کښې انګریز په دهلي
قابض شو او تر دریائې جمنا یې د سُلطنت واک اختیار
راوُرسېدو. د دریائې جهلم او د دریائې ستلج ترمېنځ
سِکهان قابض شول. د دریائې جهلم او دریائې سِنده
ترمېنځ په ټوله علاقه شاهِ کابل قابض وو او د دریائې
جهلم نه پورته علاقه د شاهِ افغانستان ملکیت وو. او د
سِنده په سیمه د شاهِ افغانستان له اړخه مختلف بلوچ
امیران قابض وو. خو وروستو نه یوازې دا چې
رنجیت سنګه د دریائې جهلم او دریائې سِنده ترمېنځ
په ټوله علاقه قابض شو بلکه هغه د جمرود تر غرونو
راوُرسېدو او د پښتنو کره پښورئې هُم قبضه کړو.
د روهیلکنډ په سیمه آباد روهیله پښتنو چې د
پاک و هند د مسلمانانو حالتِ زار نه خبر شول. نو هغوئ
د پښتنو د عظمتِ رفته او د پاک و هند دا سلامي حکومت

سر دو باره بحالی جد وجهد شروع کړو. د روهیلکنډ د سیمې یو بهادر شاه زلمی. د پښتون بزرګ او لوئی محدث شاه عبدالقادر پسر شاه ولی الله شاګرد سید احمد بریلوی محسوس کړه چې د انګریزا و سِکهٔ د غلامۍ جغ نه مسلمان آزاد کړي. هغهٔ د شاه عبدالقادر د کورنۍ دوه ځوانمو پښتانهٔ روهیله ځوانمو دان شاه اسمٰعیل او شاه عبدالحئ خان سره ملګری کړل او د دوئ د مشرۍ تحت د بریلي روهیلکنډ نه د څلور و سوو کسانو یوه ډله د کلکتې په لار په ۲۰ جولائی ۱۸۲۱ء د حج په نیت روانه شوه. د حج د ادائیګۍ نه وروستو ۱۸۲۶ء کښې د پینځه سوو کسانو یوه ډله روهیلکنډ نه ټونک راجپوتانه ته ورسیده. امیرخان روهیله نواب ټونک ئې مالی امداد وکړو او بیا د سندهـ، بلوچستان، قندهار او کابل په لار په ۲۱ نومبر ۱۸۲۶ء پېښور ته راورسیدله. دلته دریځ ورځې ایسار شیا نه پس شمکنو ته لاړل، او د غلته دریائی لنډا نه چارسدې ته پورې وتل او بیا د یوسف زی په علاقه پنجتار کښې سردار فتح خان څخه دېره شول او پنجتار ئې د خپل سرګرمو مرکز مقرر کړو. رنجیت سنګهـ چې دې واقعات نه خبر شو نو د بُدهـ سِنګهـ تحت یې یو لوئی لښکر د پېښور په لور را روان کړو - یار محمد خان حاکم پېښور چې د سِکهـ د راتګ نه خبر شو

نو سید احمد بریلوی ځکه یې د مشترکه مزاحمت فیصله
وکړه. خو هرکله چې د "اکوړې" په مقام د فریقینو ترمنځ په
۲۰ دسمبر ۱۸۲۶ء جنګ وشو نو عین په موقعه "یار محمد خان"
یار و سنګهه" ثابت شو او ولیدل شو. سید احمد بریلوی چې
د یار محمد خان دا حرکت ولید و نو حیران شو او هغه هم
په شا شو او بیا د سنګهه پېښور ته را ورسید و.
د اکوړې د جنګ نه پس سکهان پېښور ته راغلل
او په بالاحصار کښې د شاه شجاع د وخت ښکلې محلونه
او د ښار نه چاپیره (خصوصاً د بهادر کلي د شفتالانو او د
شیخ محمدي د انګورو) باغونه یې د خشاک د لوګو د پاره
تباه و برباد کړل او په یار محمد خان یې خراج هم زیات
کړو."[1]

والئ چې رنجیت سنګهه په اکثرو ویلي چې
"یار محمد خان یو ښو توني انسان دے. ما ځکه
یې هیڅ بې هیڅ معاهده ماته کړه په اکوړه یې
حمله وکړه او سردار عباس خان یې ځان ځکه
پېښور ته قید دی بوتلو چې هغه یې هلته په
زهرو مړ کړو. ماته د هغه زوئ خواص خان

[1] د پښتنو تاریخ جلد اول قاضي عطاء الله خان مرحوم ص ۲۸۶

د امداد او خپل حقوق د حصول د پاره درخواست
وُکړو. ما دده دی خواست منظور کړو. د ده امداد
د پاره مې سبکو ولېږل لوځکه چې دوئی زما ډېر
وفادار ملګری دی.»

The Punjab A Sovereign State
By
Gulshan Lal Chopra page-307

د اکوړې د جنګ نه وروستو د یار محمد خان او سید
احمد بریلوی ترمنځ تعلقات ختم شول. امیر خان یوسفزی
او د هُنډ خادی خان د یار محمد خان مرستیال وو یار محمد خان
د دوئی په امداد په پنجتار ورغلو او اراده یې وه چې
سید احمد بریلوی پنجتار نه بهر وُباسی. خو یه ۱۳
ستمبر ۱۸۲۹ء یې د زیده په مقام شکست وُخوړو.
او په شورته بارته ناکام راستون شو. د دې جنګ
یو څو شعرونه (مقطع) د توره دین شاعر په
وُکوړی،

آسونه زنبورک شاهی خېمې شوې وزنه پاتې
خټک، خلیل، مومند، پیاده راغلۀ په ماتې
مانړۍ د یار محمد د خلقدار شولې میراتې
ساته خان نور دېنه، د سید نوله آزاره
روان شو یار محمد سید وُباسی له پنجتاره

سید لہ برے ورکړي الهي پروردګار[۱]

سید صاحب اوس د پنجاب د سکھ خلاف پښتنو قبیلو ته د جهاد دعوت ورکړو. پښتنو د دوئ په دعوت لبیک ووې او ډېر پښتانه یې مرستیال شول.

یار محمد خان بارک زي چې د سید احمد بریلوي اثر رسوخ او شهرت ولیدنو ۱۸۲۹ء کښې ئې داذیل حرکت وکړو چې د یو اجرتي قاتل په ذریعه ئې هغه ته زهر ورکړل. خو الله پاک سید احمد بریلوي محفوظ وساته سید احمد بریلوي فیصله وکړه چې د بارک زي سردار خلاف کارروائي ضروري ده.

د یار محمد خان او سید احمد بریلوي ترمنځ د هنډ په مقام جنګ وشو. یار محمد خان قتل شو او سید احمد بریلوي د هنډ قلعه قبضه کړه. دې نه پس د سید احمد بریلوي او سلطان محمد خان بارک زي ترمېنځ د طورو او معیار ترمېنځ جنګ وشو. خو سلطان محمد شکست وخوړو او سید احمد بریلوي د هغه د ورور سید محمد خان نه لښکر هم قبضه کړو. سید احمد بریلوي د مېچنه په لار ریکي ته راورسیدو. او نومبر ۱۸۳۰ء کښې په پېښور قابض شو.

---

[۱] هار و بهار - دارمستېټر ص ۱۸۱

خو سلطان محمد خان ډېر چالاک او مکار وو هغه د سید
احمد بریلوی د یوسفه مکرې ارباب فیض الله خان
ساکن هزارخانی پېښور په وساطت د صلحې درخواست
وکړو. ارباب فیض الله خان د سلطان محمد خان ډېرې صفایانې
مجبوری پېش کړې. او آخرکار سید احمد بریلوی د ارباب
فیض الله خان په سفارش هغه معاف کړو. او سلطان محمد خان
د سکهانو په ځائې د سید احمد بریلوی باجګذار شو.
سلطان محمد خان که څه هم د یو روهیله مسلمان مجاهد
باجګذار وو. خو د سکه د هشت او وېره د هغه زړه کښې
موجود وه. او هغوی څخه ئې باقاعده سازباز ساته.
هغه اوس سید احمد بریلوی څخه د توری او میدانی جنګ
په ځائې سیاسی او فریبی جنګ آغاز کړو. عالمان،
ملایان ئې راپاسول او هغوی د سید احمد بریلوی
خلاف د "وهابیت" فتوې جاری کړې. د هغوی د
قتل منصوبې جوړې شوې او پېښور کښې یوه شپه
د سید احمد بریلوی مقرر کړے قاضی مولوی مظهر علی
او د هزارخانی ارباب فیض الله خان شهیدان شول او
سلطان محمد خان د بز دلۍ، بدعهدۍ او غدارۍ یو
داسې مظاهره وکړه چې د هغې پښتون شایان شان
نه وه.

سید احمد بریلوي چې دې سانحې نه خبر شو نو ډېر
ناهېڅه مات شو۔ او فیصله یې وکړه چې د پښتنو په ځائې
د کشمیریانو حمایت حاصل کړي۔ هغه د تهاکوټ پکهلي په
لار کشمیر ته روان شو۔ مهاراجه رنجیت سنګه د هغه د ارادو او تګ
نه خبر وو۔ هغه د شهزاده شیر سنګه تحت یو لوی سکه
لښکر د بالاکوټ په لور د ادوان کړو او دوئی یې راایسار کړل
جنګ وشو۔ سید احمد بریلوي خپل خاص ملګرو څخه په
دې جنګ کښې په ۶ مئی ۱۸۳۱ء شهید شو۔

"د سید احمد بریلوي او شاه محمد اسماعیل
سرونه پرېکړے شول۔ او لاهور ته مهاراجه له
ولیږلے شول"[۱]

د کهنیه لعل د بیان اهمیت په خپل ځائې۔ ولې بالاکوټ کښې
د هر کس دا بیان دې چې سید احمد بریلوي د شهادت نه مخکښې د
الله پاک نه سوال وکړو چې

"د ده سر دې د سکهانو په لاس کولاسونو ذلیل
نه شي۔"

د جنګ دوران د دوئی سر د سکهانو په توره غوڅ شو۔
دوئی خپل زر ورند غوڅ سر په خپلو لاسونو خپل بدن نه جدا

---

[۱] تاریخ پنجاب کهنیه لعل ص ۳۳۰

کړو. دریاب ته یې اړتیاوکړو. چې څو ورځې پس کړې حبیب الله ځنځه جونت خلقو د دریاب په غاړه بیا موند و او هلته یې ښخ کړو.

" د سید احمد بریلوی مزار د بالاکوټ بازار کښې، او د شاه محمد اسماعیل مزار بازار نه بهر په لږه فاصله پروت دے "

# فیض الله خان مومند

۱۸۱۸ء کښې چې شاه محمود او د هغهٔ بداکرداره زوی کامران خپل مشهور او هردلعزیز وزیر فتح خان قتل کړونو د فتح خان بارکزی وروڼه داپاسېدل او د هرات نه بغیر یې د افغانستان په مختلو علاقو کښې د سدوزی حاکمانو نه بادشاهي واخسته چنانچه :

۱ء د قندهار په علاقه پُردل خان، شېردل خان وغیره وروڼه۔
۲ء غزنی، دوست محمّد خان۔
۳ء کابل : محمد عظیم خان۔
۴ء کشمیر : عبدالجبار خان۔
۵ء پېښور : یار محمّد خان۔
۶ء کوهاټ : سُلطان محمّد خان۔
۷ء هشتنګر : سیّد محمّد خان او
۸ء دوابه : پیر محمّد خان بارکزی قبضه کړل۔

او د دې علاقو آزاد حاکمان شول. د احمد شاه ابدالي مضبوط سلطنت ډېر وبرخو لېتي ولېتي شو. عن چې بارک زي سرداران ورونه د مشترک فوج او د یو واحد منظم حکومت سایل کېنې هم ناکام شول.

د پنجاب مهاراجه رنجیت سنګه دې واقعاتو حالاتو نه فائده پوره کړه. هم دغه کال ۱۸۱۸ء کېنې دریائې سنده نه راپورې وتو. کندور، بزدل، یار محمد خان پښور نه فرار شو. رنجیت سنګه ډېر په آسانه پېښور قبضه کړو او دغسې د بارکزي سردار یار محمد خان د لاسه د پېښور خلیل مومند پښتانه خوارو زار او ذلیل شول ۱۸۲۳ء کېنې کله هر څو محمد عظیم خان ناظم کابل کوشش وکړو چې د کوزې پښتونخوا غیرت او ننګ بحال کړي او د اټک قلعه بېرته قبضه کړي. څو ک هغه د جهاد او کوشش دغه اخیري هسه هم د هغه دغه مېړني وروڼو یار محمد خان او سلطان محمد خان د جنګ نوښار په موقعه شنډه او ختم کړه په نزکو پښتانه مجاهدین شهیدان شول. ولې بارکزي سرداران بې جنګ وجدل میدان نه فرار شول او دغه شکست د خلیل مومند د مزید رسوایی او تباهي باعث شو.

۱۸۲۶ء وچې د روهیلکنډ یو مجاهد سید احمد بریلوی د سنده، بلوچستان، قندهار او کابل په لار د پېښور په سیمه

نمودار شو. بیا څهٔ وُو. پښتانهٔ ډلې ډلې د دوئ مرستیال شول. یار محمّد خان هُم د یو خاص سازش تحت دوئ څخه منکرے شو. د جهاد په جوش مست پښتانهٔ زلمی د اکوړې تسیدو ترمنځ د سِکه سردار بُدهٔ سِنګه خلاف د اوسپنې دېوال شول. خو عین په دغه موقعه یار محمّد خان فرار شو. د جوشیله مجاهدینو پښې وُښويدې او سِکه دسمبر ۱۸۲۶ء کښې بیا پېښور قبضه کړه.

سید احمد بریلوی د اکوړې د جنګ نه وروستو د جوش په ځائې د هوش لاره اختیار کړه. غیر منظم مجاهدین یې منظم کړل او ټولو پښتنو قبیلو نه یې د جهاد دعوت وکړو. د هغوئی د جهاد په دعوت چې ټولونه وړومبے چا لبیک وُوې هغه د خلیل مومند دوه څوروپسی زادان د تهکال ارباب بهرام خان او د هزارخانې فیض الله خان مومند وو څوک چې د اسلام او پښتو لې په تنګ ونام شهیدان شول.

مرهٔ هغه چې نهٔ یې نوم نهٔ یې نښان شته
تل ترتله په ښهٔ نوم پاینی ښاغلی

فیض الله خان مومند پېښور څخه جوخت د هزارخانې نومې کلی وُسیدونکے وو او دغه زمانه د لوئي اثر رسوخ او شهرت خاوند وو او ټول مومند د هغهٔ نهٔ براثر وو. هغه سن سیدهٔ

محترم شخصیت وو. او تهوله مومند نامه کېنې د "سکاکا" په نوم مشهور
وو. د فیض الله خان مومند که بیا ورځ بارکزی سردارانو
څخه ژاړه تعلقات وو نوبله ورځ اوس هغه د سید احمد
بریلوی مُرید او غازی وو. د منافقتم و چلول سیاست
یې زده نه وو. د انسانیت او سرېتوب یو مجسّم شکل
وو. ۱۸۱۸ء کېنې چې سکهان په پېښور قابض شول.
او یار محمد خان هشتنګر پلو وتښتېد وا ورنجیت سنګه د
خلیل مومند کلی لوټ تالان کړل. نو فیض الله خان مومند
څخه احساس پېدا شو چې اوس سکه لښکر نه د پېښور تحفظ
مشکل دے. هغه شمشتو څخه جوخت د غرونو خوا کېنې
د خپل آل و عیال د حفاظت په غرض یوه قلعه تعمیر
کړه. د دې قلعه کنډرات اوس هم موجود دی. خو اوس
دې ځائې خټک قابض دی د دې قلعه په طرز بیا ورو ستو هری سنګه قلعه جوړ و تعمیر کړه.
سید احمد بریلوی د اکوړې شید و د شکست
او د یار محمد خان د غدّارۍ په سبب د بارک زی سرداران
مخالف شو. یار محمد خان د سید احمد بریلوی څخه جنګ
کېنې قتل شو او سید احمد بریلوی که صوابی مردان او
هشتنګر په علاقه قابض شو او چارسدې نه خپل شپږ
زره لښکر څخه میچنی ته را ورسېد و. دغه ورځو کېنې د
میچنی آبادی په څو جونګړو مشتمل وه او هر کس ځائه

بونګړه جوړه کړي وه. سید احمد بریلوی میچني څخه په دریابې
وتو ریګي ته را ورسید و. سلطان محمد خان کابل راپورې
پېښور په لور د دوی د رانګ نه خبر شو نو خپل اهل و
عیال یې کوهاټ ته واستول او په خپله شمشتو ته فرار شو
فیض الله خان څخه یې رابطه قائم کړه. نو فیض الله خان
خپل پیر و مرشد څخه جنګ ته تیار نه وو. او سلطان محمد خان
ته یې صلاح ورکړه چې سید احمد بریلوی څخه د صلحې او
تعلق لار اختیار کړي. هغه ورته صفا ووې چې د سید احمد
بریلوی د شخصیت په مقابل د سردار هیڅ اهمیت او وقعت
نشته. او چې هر کله د سردار لښکر په میداني علاقه ماتې
وخوړه. نو د ښار یې په علاقه یې کامیابي یقیني مشکل او
ناممکن ده. د فیض الله خان مومند په دې ډاګې خبرو د
سلطان محمد خان نور ورونه مشتعل شول. او د صلحې نه
سکوت انکاري شول. نو سلطان محمد خان د فیض الله خان
مومند په مشوره راضي شو. فیض الله خان مومند د سید
احمد بریلوی خدمت کښې حاضر شو او د سلطان د تېرو ګناهو
د معافي طلبګار شو. او اخیر فیصله وشوه.

۱: سید احمد بریلوی به د تهکال نه د کابلي دروازې
په لار فاتحانه طور نه بلکې د یو مېلمه په حیث پېښور
کښې داخلېږي.

(۱۱) سلطان محمد خان به څلویښت زره روپۍ تاوانِ جنګ
ادا کوی. شل زره پېښور کښې او لس لس زره زور ستو
چارسده او پنجتار کښې.

(۱۲) سلطان محمد خان به د اطاعت او تعاون پوخ اقرار
کوی.

(۱۳) سید احمد بریلوی به د ښار قاضی او د هغه په امداد
څو غازیان مقرر ره وی.

سلطان محمد خان د پېښور د قبضې په لالچ هر شرط منودو ته تیار وو نو د هغه ورور
پیر محمد خان او وراره حبیب الله خان پسر محمد عظیم خان پیشکې شرائط منودو ته تیار
نه وو خو فیض الله خان ورته صفا ووې چې په دې شرائطو فیصله ممکن ده که داسې نه وی
نو بیا د صلحې مذاکرات ختم ګڼئ. د فیض الله خان په دې صفا ګوئی ره
وېاد غه دواړه خاموش شول.

مجاهدین که هر څو بار کې منافق عداد سرداران پېښور
څخه صلحې او د پېښور سر دوباره حواله کولو ته تیار
نه وو. عن چې ارباب بهرام خان پرې هم صلاح نه وو او
غوښتل یې چې پېښور ښار دوی ته حواله شی او د دې په
عوض به هغه سید احمد بریلوی ته مالی امداد او څلور
زره محافظ دستې ورکړی. خو سید احمد بریلوی د فیض الله
خان مومند په جرګه صلاح شو. د سلطان محمد خان او
شاه اسماعیل ترمینځ یو معاهده لاس لیک شو. فیض الله خان مومند

په دغه معاهده په دې شرائط ضامن شوې سلطان محمد خان
کړ دې اقرار نه وُچادوت نو لکه د ارباب بهرام خان به بارکزی
ځنځه قطع تعلق شی او آئینده به د دوئ برخلاف د سید
احمد بریلوی هر قسم امداد و معاونت کوی.
د صُلح نامې د لاس لیک نه وروستو فیض الله خان مومند
د سلطان محمد خان کړ دې نواهش اظهار وکړو چې هغه د بیعت
په نیت سید احمد بریلوی ځنځه د ملاقات خواهشمند
دے. ملاقات د پاره د پېښور او هزارخانی ترمینځ یو میدان
(وزیر باغ) تجویز شو. د دواړو اړخ لښکر دغلته راغلو.
سیّد احمد بریلوی، ارباب بهرام خان او مولانا شاه اسمٰعیل
د مجاهدین، او سُلطان محمد خان. فیض الله خان او مردان علی
د بارکزی سرداران له اړخه مذاکرات کښې شامل شول
د مذاکرات دوران د بهرنه د ټوپک د ډز آواز راغلو. د سلطان
محمد خان رنګ زیړ وګرځېدو. مولانا شاه اسماعیل، فیض الله خان
المحروف "کاکاجی" ته د بهرتګ او پته لګولو اجازت ورکړو
څه ساعت پس یو سړے لاس تړلے راوستے شو. هغه سخت
ویرې اخستے وو. پته ولګېده چې کردې سړی اد ډک ټوپک
د ماشې ځنځه د بل سړی کو ته ولګېده او ټوپک خلاص شو.
د مذاکرات نه وروستو فیض الله خان مومند ټول
لښکر او حاضرین ته د ډوډۍ بند وبست وکړو چې کلان او

پلاؤنه پکښې شامل وو. سید احمد بریلوي دوی ونه
خوړه او هغوئ څخه تیاره دوی په ځلور تها نګو کښې کوګړهی
پېښور ته راوړلے شوه. چرته چې سید احمد بریلوي ډیره
وو. په دوئمه ورځ دوباره مذاکرات وشول. تهولو غازیانو
او حاضر نیوته فیض الله خان مومند دوی ته وکړه. دغه ورځ هم
سیّد احمد بریلوي دوی ونه خوړه. او حسب سابق هغوئ
څخه تیاره دوی ښار ته راولیږلے شوه.

(سیّد احمد شهید از غلام رسول مهر ص۶۵۸)

سیّد احمد بریلوي صاحب چې نه وروستو د ځمکتو په
په لار د پنجتار ته روان شو. مولانا مظهر علی د پېښور قاضی
مقرر شو او هغه څخه د قمر الدین عظیم آبادي تحت د څو غازیانو
یو محافظ دسته هم مقرر شوه.

سردار سلطان محمد خان چې د خپل مکر او چالاکۍ په پالیسۍ
کښې کامیاب شو او د پېښور په خالي وعده بیا ترلاسې کړو
نو سازش ئې آغاز کړل. د ځینې عالمانو په وساطت ئې
د سیّد احمد بریلوي خلاف د وهابیت فتویٰ جاري کړه او
که د پېښور مشهور عالم دین مولوي غلام جیلاني، ملا
عبد الحمید، قاضي منصور او پیر غیاث خلیل ساکن پلوسه
هر څوک سیّد احمد بریلوي موسټیان وو. خو د ځینې
عالمانو مخالفت او طرز عمل د سیّد احمد بریلوي مشن

ناکام کړو. سردار سلطان محمد خان داسې حالت نه فائده پورته کړه او یو داسې سازش یې تیار کړو چې نه صرف مجاهدین قتل کړی بلکې د مجاهدینو ضامن فیض الله خان مومند هم قتل کړی. د چا د اثر رسوخ او توم تهیلې نه چې هغه هر وخت په ویره او خوف وو. د سازش ابتدا پیښور نه وشوه. فیض الله خان مومند او قاضی مظهر علی شهیدان شول او سردار سلطان محمد خان د یوې داسې کمینګۍ بزدلانه او بد عهدۍ حرکت وکړو چې د بارکزی په نوم یو بد نما داغ شو.

د ګوپال داس دا تحریر دی:

" در عهد سکهان میں ارباب محمد خان کا اتفاق راجه تیجا سنگھ سے از حد زیادہ تھا۔ اور ہری سنگھ راجہ تیجا سنگھ سے نفاق رکھتا تھا جب ہری سنگھ حاکم پشاور ہوا تو اُس کا نتیجہ یہ نکلا کہ وہ ارباب محمد خان کو بہ لحاظ اسی راجہ کے اچھا نہ جانتا تھا۔ اس کے خوف سے ارباب محمد خان فرار ہو کر کابل میں چلا گیا۔ اُس نے امان اللہ خان ہزار خانی والے کو ارباب کیا۔ اور اس خاندان کی جاگیر ضبط کر لی چنانچہ امان اللہ خان، فیض اللہ خان و فتح خان ہزار خانی والے کچھ عرصہ ارباب رہے "

---

(۱) فیض الله خان (زوی) امان الله خان (زوی) عظیم الله وروره دو.
(۲) فتح خان بن فیض الله خان.

تاریخ ضلع پشاور ص ۶۳۸

هېڅ معنیٰ او حقیقت نهٔ لري. فیض الله خان مومند د هري سنگهه د حاکم پشاور تقرري نه اګاهو شهید وو. البته امان الله خان د سِکهه سرکار په عهد د مومند قوم جاګیردار وو.

---

## د ارباب فیض الله خان شهید هزارخاني د اسلاف و اخلاف

## شجرهٔ نسب

نقل کیفیت از شجرهٔ حقیقت ۱۸۷۰ء موضع کرهي فیض الله خان تحصیل نوشهره ص ۸۴۷/۸۴۸ او ذاتي معلومات



د فیض الله خان مومند په شهادت د نورالدین اخون
چاربیته چې د فرانسیسي محقق دارمستېټر کتاب "بهار و بهار"
کښې درج ده. د نظم په سر ۱۸۳۱ء درج دے

په خزان توئ شوې د تمام مومنه سرداره
د بلبلانو سترګې سرې شوې له خماره

---

فیض الله خان وېل په برخه مې تعزیر دے
ماته په خوب کښې راحضور د مرګ زنځیر دے
نمایه وینو باندې سور باغ د وزیر دے
مانند پښتې په سترګو وُلیدې بې شماره
په خزان توئ شوې د تمام مومنه سرداره
د بلبلانو سترګې سرې شوې له خماره

---

فیض الله خان له یو سرے راغے یا رانو
خانه! دلبار له یې پلے سردارانو
ځان سنبال کړے ورله ځمه نوکرانو
کله به خلاص شو د ټکانو له دباره
په خزان توئ شوې د تمام مومنه سرداره
د بلبلانو سترګې سرې شوې له خماره

---

دربار له ورځ خبوره کړه د نڅوره
کوم خوا به خلاص شي له ماڼه ټینته تربوره
پیر محمد[1] خان ورته منګل ایښي وه په توره
د بارکزو په دام کښې ونښتې هوښیاره
په خزان توئي شوې د تمام مومند سرداره
د بلبلانو سترګې سرې شوې له خماره

---

په دام کښې ونښتې چاپېر ناري سوري شوې
بیایه دانه شي مخکښې ډېرې نندارې شوې
شهید له جوړې په جنت کښې منارې شوې
ژاړي رحیم[2] مغرور د شاه د غارې هاره
په خزان توئي شوې د تمام مومند سرداره
د بلبلانو سترګې سرې شوې له خماره

---

ورپسې ژاړي فتح[3] خان دُر د صدف دے
لکه آفتاب هسې ښکاره په هر طرف دے

---

[1] د سلطان محمد خان او یار محمد خان بارکزي ورور.
[2] دا د مستبه تورې د سیداحمد زوئي نیائي.
[3] دا د مستبه تورې د پنجتار خان نیائي.

په سخاوت په عبادت کښې مشرف دے
په خوئ خوش بويه په څېر گل عطاره
په خزان توئ شوې د تمام مومند سرداره
د بلبلانو سترګې سرې شوې له خماره

---

خوشحالي لاړه پېښور کښې ظلم ډېر شو
ګل د نمير فيض الله خان په ځمکه زېر شو
په درست مومند کښې ريا نشته مړه اور شو
قتال دې جوړ کړو نۀ ويرېږې له آزاره
په خزان توئ شوې د تمام مومند سرداره
د بلبلانو سترګې سرې شوې له خماره

---

نۀ نور دين اول صفت د کوم نواب کړم
د پېښور خانان په ټول درته حساب کړم
که در ښکاره د نسيم خان عباس[1] کتاب کړم
ارمان ارمان د فيض الله خان د بګړيه واره
په خزان توئ شوې د تمام مومند سرداره
د بلبلانو سترګې سرې شوې له خماره

---

[1] د کافي کوشش باوجود د نسيم خان عباسي د دې کتاب هيڅ درک او پته نۀ لږي د دوئ نو موئو مزاج هم په دغه زمانه څه عجيبه شان ښکاري د پښتو د شعر او د شعرا د پاره د دې کتاب لوئې اهميت دے۔

د تپې مومند اربابي او مشرۍ د هزارخاني اربابانو
شجره د کوم وخت راسې وه، د دې هم پوره پته نشته
خو د تیمورشاه بن احمد شاه ابدالي په فارسي ژبه یو
حکم شجره صفا بریښي چې هغه د یو سابقه حکم تجدید
کوي او د ارباب فیض الله خان شهید نیکه محمد اسلم خان
$\frac{1789}{1203}$ع ه کښې د تپې مومند مستقل ارباب مقرره وي د دغه
سند پښتو ترجمه دا سې ده

بسم الله الرحمن الرحیم

الله پاک لويې مددګار دے

(مهر حکومت تیمورشاه)

لکه چې حسب الحکم عزت مآب محمد اسلم خان
ساکن هزارخاني اول نه د تپې مومند ارباب
مقرر دے۔ اوس پرې مونږ مزید شاهي مهرباني کوو
او دے د تپې مهمند مستقل ارباب مقرر وو
د شاهي مهربانۍ په نتیجه کښې مونږ د دې
مبارک کال د شروع نه ارباب موصوف ته د
خپلو مراعاتونه علاوه (۳۵۰) تومان اضافه ورکول
غواړو چې هغه خپله علاقه کښې امن وامان
وساتي۔ د علاقې د خلقو نیه بند وبست وکړي
او د یو ژنیو کلکتر، مالیاتي مشر په حېث د

علاقې د خلقو نه هر کال پوره مالیه وصول کړي
او وصول شده مالیه ناظم پېښور ته حواله کړي
او هغه نه بېرې رسید حاصل کړي او داسې
معاملاتو ته توجه ونکړي چې د دې علاقې
خلقو سره تړلې وي او آینده نحوک هم د دې
علاقې د خلقو حق تلفي ونه کړي. په دوی
ظلم زیاتي ونه کړي او ښه سلوک ور سره
وساتي. دوی ارباب صیب نه خوشحاله شي
او د ده احسان مند شي. خلق د یو فرمان دار رعایا
په شان خپل کار کښې بوخت شي. ځانله رزق
پیدا کړي او سرکار ته مالیه ورکړي او نحوک
هم د ارباب محمد اسلم خان په اربابۍ کښې مداخلت
ونه کړي او هغه خپل کار په ښه طریقه سر ته
ورسوي. خلق خپل ځان د ده د اربابۍ د دوران محفوظ
وګڼي او د دوی حکم ومني. د محکمه مالیات
او چټ مشران دې دا حکم په خپل متعلقه دفترونو
کښې درج کړي او عمل در آمد دې پرې وکړي»

۲۷ شعبان المبارک ۱۲۰۳ هـ

(ددې حکمنامې په شا د تیمورشاه د عهد دولس (۱۲) مهرونه ثبت دي)

د محمد اسلم خان د مرګ نه پس محمد اکرم خان او د

اکرم خان نه وروستو ارباب فیض الله خان د اربابۍ په منصب سرفراز کیږي. د ارباب فیض الله خان د شهادت نه پس د سکهانو په دورِ حکومت د هغوئي د روځیا فتح خان ارباب مقرر شي. د سکهه شاهي حکومت حکمران ابوطویله (۱۸۳۷ء تا ۱۸۴۲ء) د ځینې احکاماتو مطابق:

گرانه عالیجاه ارباب فتح خان

"ضروري ده. چې تاسو به د موضع ادیزئ او نورو کوهِ دامن خلق په دې مطمئن کړئ چې د دبیځ سمبت (۱۸۹۷-۹۸) په مطابق (۴۲-۱۸۴۱ء) د کوهِ دامان خلقو بقایاجات معاف شوي دي. د خلیل او داؤدزو خلق دې په معاملات د پاره اپیل نه کوي. او که کوي نو بیا مهرباني وکړه افریدیان او مومند هم خبر کړه چې په د غه شپه حاضر وي کنه هغوئي به قصوروار وي. او تاسو ته به ستاسو د خواهش مطابق انعام ورکیږي. حاجي سعد الله خان ستاسو خدمات منوري دي. دا ذمه داري ستاسو په غاړه ده.

شوالیر ( Chivalier )

جنرل ابوطویله امین الدوله

## یوبل خط

"ملک مجید خان - حق بول خان - مهردین - دوران خان
اسماعیل خان - رحمت الله خان وغیره ملکان
ادنوئی ته هدایت کولے شی چې د باربار درخواست
مطابق تاسو ته حکم کیږی چې ارباب فتح خان
تخته په دې کار کښې ملاتړ کوئ دا کار د عوامو د
مفا دو د پاره دے"

۳۱ ارهاړ سمبت ۱۸۹۸ء (بمطابق ۱۸۴۲ء)

"مُهر"

شوالیر جنرل ابوطقر به صاحب بهادر
امین الدوله دلاور۔

دسمبر ۱۸۴۲ء کښې ابوطویله د افغانستان په بور فرار شو
او مهاراجه شیر سنګه جنوری ۱۸۴۳ء کښې راجه تیجا سنګه
د پېښور ناظم اعلیٰ مقرر کړو نو راجه تیجا سنګه د کوټله
محسن خان ارباب محمد خان تخته خیل زاړه تعلقات اسنوار
کړل ځکه چې د هری سنګه نلوه د حاکمیت دوران هغه
تخته د ورانۍ په سبب افغانستان ته فرار شوے وو
او د هری سنګه او ابوطویله د حکمرانۍ دوران د جلا
وطنۍ وخت تیر ولو. راجه تیجا سنګه ۱۸۴۵ء پورې
د پېښور حکمران وو. دې دوران د هزار خانۍ د اربابانو

شان و شوکت بېلحي ختم شو او لکه چي د احقیقت د شېر سنګه ولد چتر سنګه (۱۸۴۶ء تا ۱۸۴۸ء) د حاکمیت دوران د یوي معاهدي نه صفا ښکاره شي چي ارباب فتح خان د تنګدستي په وجه د هزارخاني زمکه حافظ غلام محی الدین څخه د لسو زره روپو په عوض اجاره کوي:

"زه حافظ غلام محی الدین ولد حافظ محمد نعیم (مرحوم) وعده کوم چي ماد عالیجاه ارباب فتح خان نه موضع هزارخاني تپه موسند په لسو زره روپو اجاره واخسته. د نیل انعام نه علاوه ما د دي ځایي قبضه واخسته. زه به د اجاري دوران د حکومت رقم باقاعده اداکوم. او عوامي خدمت به هم کوم"

"مهر" د غلام محی الدین۔

(بتاریخ ۲۷ جمادی الاول ۱۲۶۳ھ بمطابق ۱۸۴۸ء)

ګواهان: حید شاه. شیخ امیر. ملک حمید. ملک محمد

(د انګریزي نه توجمه)

---

## د ارباب فیض الله خان د جائیداد کیفیت

۱: کندے سروزئی هزارخاني: یوه برخه جائیداد دا جائیداد د انګریز سرکار ضبط کړو. او وروستنو د لندي یو برخه ارباب محمد اکرم خان نه بیا حواله کړو.

ii : منیرہ کچوڑی : اووۂ زرہ (۲۰۰) جریبہ۔ دا جایداد
انگریز سرکار ضبط کړو او ورو ستو د لنډی یرغجو
ارباب محمد اکرم خان ته بیې حواله کړو۔

iii : مېرہ کړهي فیض اللہ خان اتۂ زرہ (۸۰۰۰) جریبہ۔ دا جایداد
انګریز سرکار ضبط کړو او وروستو د لنډی یرغجو ارباب
محمد اکرم خان ته بیې حواله کړو۔

iv : چک شاہ پسند (المشهور چینګکائ)۔ د دې ځائې د مستقل
کاشتکارانو نه هم حقیقي مالکانه حقوق ارباب محمد اکرم خان
ته حواله شو۔

v : مسني خېل : ۱۱ برخه

vi : کتد ے احمدزئی : ۳+۲ برخه جایداد۔

vii : چک کنډ مند یزئی۔

viii : پټي : دوه چک زمکه۔

د ۱۸۷۰ء د بندوبست نه یسکاره ده چې :

" کل اولاد اُس کی ابتدائی عملداری سرکار سے فرار
ہوکر کابل چلے گئے۔ بوقت تصدیق بدین لحاظ کہ کل حقیقت
اولاد فیض اللہ خان کی ضبط سرکار ہو چکی تھی۔ وہ ملکیت سرکار
دولت کی قرار پائی "

---

# د ارباب فیض اللہ خان

## د جایئداد او خانئ دا یو دستاویز هم وګورئ

## نقل کیفیت عام از شجرۂ حقیقت ۱۸۷۰ء موضع گھڑی فیض اللہ خان تحصیل نوشہرہ

"یہ رقبہ میرہ پہلے بلا قبضہ پڑا ہوا تھا۔ اور متعلق رقبہ
باؤ واری موضع موسے زئی و ارمڑ میانہ تصور ہوا تھا۔
اکثر اس رقبہ کو مزارعان سکنائے ارمڑ و سپین خاک وغیرہ
دیہات ملحق الحدود کے بوقت ہونی بارش کے کاشت
کرتے تھے اور ملکیت مالکان ہر دو دیہہ مذکورہ کے
تصور ہوتا تھا۔ عہد سکھاں میں بعرض حکام ارباب
فیض اللہ خان سکنہ ہزارخانی بایں لحاظ کے اس میرہ میں
افریدی لوگ مال مویشی و زراعت ورا ہیان کا نقصان
کرتے تھے، ایک گڑھی بنائی اور سواران اپنے کو اس میں
رکھی اور خود بھی اکثر رہا کرتا تھا۔ اور مزارعان کو بھی
آباد کیا۔ اس جگہ آبادی کو امن ہوا۔ جانے گڑھی کے نام
سے نام اس کا گڑھی فیض اللہ خان معروف ہوا۔ جب سے
گاؤں آباد ہوا ہے کبھی ویران نہیں ہوا۔ بعد عہد سکھاں
کی فتح خان مفرور ہوگیا۔ الا ساکنان دیہہ بدستور آباد
رہے اور اب تک آباد ہیں۔ نیز دولت سرسری میں یہ
گاؤں بہ باعث نہ ہونے پیمائش ایک علیحدہ موضع تصور نہ

ہوا۔ اور نہ کسی کی ملکیت قائم ہوئی۔ بعدش بنور خان وارث فیض اللہ خان نے دعوی کیا ملکیت کا۔ اور مالکان موضع موسے زئی نے اپنی ملکیت۔ اُرمڑ میانہ کے مالکان نے ملکیت اور اس طرح اُرمڑ پایان والوں نے دعوی ملکیت کیا۔ بعد تحقیقات کے مسٹر کاکس صاحب ڈپٹی کمشنر بہادر نے ہمراہ مثل مقدمہ متنازعہ میرہ موسے زئی وسوئزیری پایان کے مسندگویہ[1] حکم فرمایا۔ کہ یہ رقبہ مالکان موضع موسی زئی و اُرمڑ میانہ کا بحصہ نصف نصف تصور ہوئے۔ اس حکم بموجب اب ہم مالکان پاؤ واری کے دیہات میں مالک ہیں۔ وہ اس زمین کے مالک ہیں چنانچہ شجرہ نسب اُن کا اوپر درج ہے اور مالکان موضع موسی زئی و اُرمڑ میانہ میں آباد ہیں"

---

دَ فیض اللہ خان دَ شہادت نہ پس دَ ھغہ نواسے فتح خان دَ سکھ سرکار دوران حکومت دَ ارباب په اعزاز سرفراز شو او دَ ھغوئ په خط وکتابت کښې دَ عالیجاہ په خطاب موصوف

---

[1] مسند

Masand = Agent to collect tithe کارندہ۔

Tithe = دَ پیداوار لسمہ برخہ

وو. دَ سِکه ....... دورِ سُلطنت په اختتام دَ امیر
دوست محمّد خان په حمایت دَ انګریز سرکار دَ عملدارۍ
په راتګ دَ مېچنۍ په لار کابل ته فرار شو. دوئ تخه دَ غه
مفرور تیا کښې دَ فیض الله خان دَ ورور نوامان الله خان
او عظیم الله خان اولاد هُم شامل وُو. دې نه علاوه
دَ بهادر کلی عبد الله خان. ارباب شېر محمد خان تهکال
او دریاخان ادې زئ هُم عالیجاه فتح خان تخه په دې
مفرور تیا کښې ملګرے وو. ۱۸۶۳ء کښې امیر دوست محمد خان
دَ مرګ نه پس امیر شېر علی خان هُم دَ پېښور دَ دې
خانانو خاص خیال ساتهٔ او یو معقول تنخواه او نور
مراعات تخه سرفراز وو. خو ۱۸۷۹ء کښې چې امیر شېر علی خان
وفات شو او دَ انګرېزانو په حمایت په ۳۰ جولائی ۱۸۸۰ء
امیر عبد الرحمان پسرِ میرا فضل خان دَ کابل بادشاه شو
نو دَ مومند ودې آزاد طبیعت او حُریت پسند خانانو ته
دَ انګریز غلام بادشاه په سُلطنت کښې وُسېدل ګران
شول. انګرېزانو تخه دَ دوستۍ او تعلق په سبب دَ
امیر عبد الرّحمان په نظر کښې هُم دوئ آغزي وُو. نتیجه
دا شوه چې عبد الله خان. ارباب شېر محمد خان او دریا خان
داغوره وُګڼله چې خپل وطن پېښور ته واپس راشي
دَ دوئ دَ راتګ نه پس $\frac{۱۸۸۳ء}{۱۲۹۸ھ}$ کښې ارسلاخان واکبرخان

پسرانِ عالیجاه فتح خان، قمرالدین بن مهمند خان، نعیم خان ابنِ امان الله خان. بنور خان ابن عظیم الله خان وغیره هُم هزارخانی ته د بیځه دبرش کاله د جلاوطنی نه پس راغلل.
عالی جاه فتح خان د دوی د راتګ نه اګاهو کابل کښې وفات وو او هلته ښخ وو....

د عالیجاه فتح خان زوئے ارسلا خان انګریز سرکار ته دخپل پلار د جاګیر او خپل ذاتی پدری جائیداد د بیرته والسی د پاره کښې شمیره درخواستونه ورکړل او چې دغسې ونه شوه نو ۱۸۸۷ء کښې یې دیوانی مقدمه شروع کړه.
دوئی نه وروستو اکبر خان دغه سلسله ۱۹۲۷ء پورې جاری وساتله. خو د هغوئی په دغه درخواستونو، مقدموا او پیلوټو هیڅ شنوائی ونه شوه.

د بهادرکلی د عبد الله خان، د تهکال د امیر باب شیر محمد خان او داد بزرګ دریا خان د مفرور تیادوران د دوئی نه مکې هُم به حقِ سرکارِ انګلیسیه ضبط وې او نورو خلقو ته حواله شوې وې.

د اکبر خان د وفات نه پس د هغهٔ زوئے میر عالم خان هُم کافی عرضدا شتونه انګریز حاکمانو ته ورکړل. هغه د خپل مقصد حاصلولو د پاره په ۸-۹-۱۹۰۸ء کبولری ایف الف کور بنګال رجمنټ کښې نوکر شو او په ۳۱ دسمبر ۱۹۱۴ء کښې

دغه هڅې د پښتنو اخستو نه پس ۱۹۲۱ء کښې د پولیس آف و یلز
په سفارش د پیټې کمشنر پېښور ځخه د یو چپړاسي په حیث
په دې غرض نوکر شوې چې سابقه جاګیرونه ورحیثیت
بحال کړي. خو جاګیرداري نظام خپل خاص تقاضات غوښتې
او مقاصد لرل. او په دغه خصوصیات مکمل جاګیردار د هر
شاهي نظامت ترهغه وخته آله کار وو ترڅو چې هغه د حکومت
وخت د مخصوص مفادات پاسدارۍ او تحفظ کړو. او
جاګیر د دغه ملازمت او خدمات د شاهانه نظر، فیاضۍ
او مهربانۍ صِله او انعام وو.

د هند و پاک د تقسیم نه وروستو بهارت جاګیرداري
نظام ختم کړو او ټول جاګیرونه یې د حکومتِ هند په حق
کښې ضبط کړل. خو پاکستان کښې داسې ونه شول. بلکه
جاګیردار د هغه جاګیرونو وارث او خود مختار مالک شو
چې کوم جائیداد ونه حکومتِ وخت د عام عوام لاسونو نه
ترولي او په زوره اخښتي وو.

د پاکستان د قیام نه پس حاجي میرعالم خان په یو نوي
ولوله او جوش و جذبه د دغه جائیداد د حصول دپاره هله
ځله او منډې ترړې جاري وساتلې. عدالتونو کښې کیسونه
ګورنر جنرل ته درخواستونه، وزیراعلیٰ ته اپیلونه او څنګ
چې سکندر مرزا، ایوب خان او ذوالفقار علي بهټو ته خطونه

استول هغوئ خپل عام معمول کړو. خو سن رسیده حاجي
میر عالم خان دَ خپل پلار دنیکهٔ ذاتي جائیداد او جاګیر لسې
په دې ملک خدا دکښې نه ړنه سترګې او ارماني دَ کور تورو
خاوړو ته کوز شو. ولې دَ سید احمد بریلوي په ملګرتیا
او حمایت دَ فیض الله خان شهید او دا ټکر یو په مخالفت دَ
عالیجاه ارباب فتح خان ضبط جائیداد او جاګیر یې خپل
نهٔ کړو. او دغسې دَ باړه مومند په سیمه دوه اصې کورنئ
او دَ بهادر خان او هزار خان اخلاف او عزیز خان، عبدالرحمان
و فیض الله خان شهید او عبدالله خان و فتح خان اخلاف
و اسلاف دَ مغل، سکه. بارک زي او ا نکو یو په مخالفت
دَ سیّد حامد بخاري دَ قتل. دَ جلال الدین روښانی
په حمایت. دَ مرزا کامران په ملګرتیا دَ هندال دَ قتل
په سزا. دَ کمال خان داؤد زي په امداد
او دَ سیّد احمد بریلوي په مرسته دا سې
تباه و برباد او وزړ بوږه شول چې خپل وراثتي
جائیداد و نو نه محروم شول. او که دَ موسئ زئ
سوریزئ، بډبړ، ماشو وغیره اقوام دَ ورسک
او جهاوږي نهر و نو نه مستفید کیدل او دَ
برخه واره خشک، بنجر شاړې زمکې یې
سرسبز و شاداب کیدلې. نو دَ دوی دَ برخه وادي

مېره جات او جائيداد اَکاهونه د حکومت
وخت د نافرمانۍ په سبب ضبط وې. او د
جاګير په شکل د هغوی د فرمانبردارو او
وفادارو په لاس او قبضه وې .

## د ګورنر جنرال سکندر مرزا د يو خط عکس



GOVERNOR-GENERAL'S HOUSE
KARACHI
Dated the 16th September 1955

My dear Khan Sahib,

I am enclosing herewith the papers of Haji Mir Alam Khan. In his application he says that his grandfather Mohammad Aslam Khan was honoured with the position of Arbabship and Revenue Collector of Tapa Mohmand, but later his Jagir was confiscated by Government. Haji Mir Alam Khan is now anxious that a share out of the confiscated Jagir may be allotted to him. He is a good old man who has been working with the Deputy Commissioner of Peshawar for a long time and I will be grateful if you will look into his case.

Yours sincerely,

(Iskander Mirza)

The Hon'ble Dr. Khan Sahib,
Minister of States and Frontier Regions,
Government of Pakistan,
Karachi.

# د افغانستان اولنۍ جنګ

۱۸۳۵ء وو چې برطانیه کښې د ویګ حکومت لارډ آک لینډ د برصغیر پاک وهند ګورنر جنرل نامزد کړو د هغهٔ په ذمه ضروري کار دا وو چې افغانستان نه خه تعلق او دغلته د یو تجارتي مشن د قیام لار هواره او د هند د انګریز سرکار متعلق حالات سازګار کړي. او د غسې وسط ایشیا کښې د روس پیش قدمي. ایران کښې مداخلت او د افغانستان د انګریز سرکار خلاف لمسول ختم شي. آک لینډ خپل یو تجارتي وفد د الیګذانډر برنس تحت چې میجر لیچ ډاکټر لارډ او موهن لعل هُم پکښې شامل وو. د حیدرآباد بهاولپور، ډیره غازي خان او پېښور په لار د کابل لو. د غه زمانه علی مسجد پورې د امیر کابل سُلطنت وو. دغه وفد چې د خیبر غرونو دننه داخل شو نو د امیر افغانستان دوست محمد خان له اړخه یې شاه غاصي ګل مرزا آغا جان او سعادت خان بر سوسند استقبال وکړو او دغسې دا وفد

په ۲۰ د سمبر ۱۸۳۷ء کابل ته ورسید و.

د امیر دوست محمد خان او برنس ترمنځ د دوه اړخیز تجارت د قیام کافي گفت و شنید وشول. خو دغه ټول مذاکرات د پېښور په مسئله ناکام شول. امیر دوست محمد خان رنجیت سنگه نه د انگریز د مرستې او امداد په وساطت پېښور بېرته خپل سلطنت کښې د شمولیت اسرار کولو خو انگریز سرکار د رنجیت سنگه دوستۍ او تعلق پر پېښور دو نه تیار نه وو او محض تجارتي تعلقات قایمول یې غوښتل د دې لوئې وجوه په بنا د انگریز سرکار برنس مشن ناکام شو او په ۲۶ اپریل ۱۸۳۸ء هندوستان پلو نامراده ستون شو.

د امیر دوست محمد خان ورور کهندل خان والئ کندهار چي د انگریز سرکار د وفد کابل کښې موجودگۍ نه خبر شو نو د خپل ورور په مخالفت او ترنگنۍ هغه هم ایران او روس سره د دوستۍ جوړولو خواهش ظاهر کړو. د ایران او روس سفیران کندهار ته راورسېدل. د روس سفیر ویکو پیچ د موقعې د نزاکت نه فائده پوره کړه او په ۲۹ دسمبر ۱۸۳۷ء کابل ته هم راورسېد و. د انگریز او روس د سفیرانو موجودگۍ د کابل سیاسي اهمیت نور هم سېوا کړو. انگریز د تجارتي مشن د قیام په ناکامۍ د امیر دوست محمد خان د باشاهت

په خاتمه تیار شو. شاه شجاع څخه یې ۱۸۳۸ء کښې لدهیانه کښې
یو دریځ اړخیزه معاهده لاس لیک کړه چې د انګریز سرکار
سکھ سرکار او شجاع ترمنځه دا معاهده د پښتنو د بقا او وجود
ضمن کښې یو شرمناکه او ذلیله معاهده وه. د دې معاهدې
په رو شاه شجاع تحریري طور پښتانه د دریائ سِند هـ
د دواړو غاړو د قبضې د حقوق او د کشمیر، هزاره، ډیره
جات او د پېښور د علاقه جات نه د رنجیت سِنګھ په حق کښې
دستبردار او محروم کړل.

د شاه شجاع په حمایت دوه ډلې لښکر د افغانستان په
لور را روان شو.

۱: یوه ډله د مېکناټن او شاه شجاع تحت د شکارپور
سنده او قندهار په لار.

۲: دوئمه ډله د سر کلاډ ویډ او تیمور شاه پسر شاه شجاع
تحت د سِکھ فوج په حمایت او کومک د لاهور و پېښور
په لار کابل طرف ته روان شو. ۱۸۳۹ء کښې دا لښکر پېښور
ته راورسېده.

او بقولِ کهنیه لعل:

"پہلے سکھ نجیبوں کے سپاہیوں نے خیبر میں جانے
سے انکار کیا. اور آثارِ سرکشی کے نمودار ہوئے مگر کنور نونہال
سنگھ اور جرنیل اویطویلہ کی حسن تدبیر سے وہ سرکشی

فرو ہو گئی اور ایک اور فساد شروع ہوا۔ کہ گورکھیوں
کی پلٹن نے خیبر میں جانے سے سخت انکار کیا اور زبانی
فہمائش اُن کو کارگر نہ ہوئی اور درہ خیبر سے وہ پلٹن بلا
اجازت اُٹھ کر پشاور میں چلی آئی۔ کنور نونہال سنگھ نے
اور فوج کو مامور کر کے اُن سے توپیں چھین لی ........
سردار سلطان محمد خان کہ روزِ فتح پشاور سے لاہور
میں رہتا تھا .......... مہاراجہ نے پشاور کو روانہ کیا
کہ انگریز فوج اور سکھ فوج کو اِس مہم میں مدد دے "

د مېکناټن او شجاع لښکې چې غزنی ته راورسېدې. نو د
امیرِ کابل د غزنی گورنر حیدر خان ېې جولائی ۱۸۳۹ء کښې
زبردست مزاحمت وکړه. خو حیدر خان شکست وخوړو او
څه دوه سوه پښتانه د غزنی د محاصرې دوران شهیدان شول
دوست محمد خان چې د غزنی د شکست نه خبر شو نو اوتر او
پرېشان شو. خپل زوئی اکبر خان ئې د جلال آباد نه خپل
ټول لښکر څخه کابل ته راوغوښتو. د جلال آباد د خالی
کېدو نه چې د علی مسجد په مقام پروت پښتون لښکر خبر
شو نو هغوی علی مسجد نه تیتر بیتر او خواره شول او خیبر
ویده بې د څه مزاحمت نه علی مسجد قبضه کړو.

شاه شجاع انگریز سرکار چې غزنی فتح کړو نو د کابل
په لور را روان شول. امیر دوست محمد خان خپل ځان کښې د

کابل د حفاظت دم وُنهٔ لیدو. حوصله یې بائیلو ده.
نبیل تهول خان نزل څخه بامیان پلوٌ فرار شو او دغسې د
انګریز و شجاع مشترک لښکر د غزنی د فتح په نهمه ورځ
۷ اګست ۱۸۳۹ء کابل کښې داخل او قابض شو.

۱۱ ستمبر ۱۸۴۰ء ووچې امیر دوست محمد خان د پښتنو
پولوئې لښکر تیار کړو او د انګریز او شجاع خلاف د پروان
دره په مقام وُجنګېدو. پښتون کامیاب او انګریز ناکام شو
لیفټننټ براډفټ. کرسپن او لارډ قتل شو. کپټن فراسر
او کپټن پنسن بائی سخت ټپیل شول.

د امیر دوست محمد خان دغه کامیابي محض انګریز ته
د خپلې برترۍ احساس ورکول وو. هغهٔ د فتح باوجود
یکتنها ځان کابل ته راوُرسوو. او انګریز ته یې ځان
حواله کړو. انګریز په ۱۲ نومبر ۱۸۴۰ء د قیدي په
حیثیت د هندوستان په لور روان کړو. لارډ آکلینډ
ئې پوره دلجوئی وُکړه او دوه لکه روپیه سالانه
پنشن ئې مقرر شو.

د انګریز د راتګ. د کابل وغزنی فتوحات او د
امیرانِ کابل بې بسی او بې غیرتئ عام پښتانهٔ په بغاوت
او شورش را ولاړ کړل. د خپلو سردارانو او مشرانو
تحت متحد شول. او د کابل په لور را روان شول -

۲ د نومبر ۱۸۴۱ء دوچې الیګزانډر برنس خپل کور کښې
قتل شو. او که ده قتل شخه سم پښتنو خپل لوئې طاقت
شخه کابل محاصره کړو. د امیر دوست محمد خان زوئې
اکبر خان چې د انګریز خلاف زبردسته اجتماع او اتحاد ولیده
نو دَ موقع نه یې فائده پوره کړه او د مختلف قبائیل
دغه منتشر قوّت یې منظم کړو. د خلوښت ورځو
متواتر جنګ کښې انګریز تواړو ذلیل شو.
د دوئ نامتوکسان کپتان وبنډم. کپتان سوین
کپتان رابن سن. کپتان کاډرینګټن. کپتان میکن توس
کپتان تهراوپ. کپتان لپتن. کپتان پیټن. کپتان
سکنر. ساندرز. وډبرن. کپتان داترے. ډبلیو براډ فټ
کپتان تیکل. کرنل شیکرپایل، کرنل اولیور. برګیډیر انکوټیل
لیفټیننټ ماؤل. لیفټیننټ ګینګ. لیفټیننټ سټهورټ. لیفټیننټ
جینکن. ای کنګ بکاردن. سالسبری. کاډت واکر
ولبسټ سکاټ. کاډرنګټن. روز. کارنټ هارډی مین، ټرنر
ولیم میکناټن وغیره قتل شول. د دوئ ښځې، لونړه
عن چې لیډی سیل، لیډی میکناټن او نورې ډېرې
ښځې د پښتنو د دستور مطابق د مکمل حفاظت تحت وروسته
د انګریز سرکار په حواله شوې. میجر پوټینګر. کپتان ایرې
کپتان کانولی. کپتان ډرومنډ. کپتان والش. کپتان وبب

کپتن رچرډ واربرټن ـ لارنس ـ مېکنزي ـ او الفنسن
وغیره انګرېزان په ۲۸ دسمبر ۱۸۴۱ء گرفتار او بونګا شول.
لېډي مېکناټن ـ لېډي سېل[1] ـ جنرل الفنسټن د محمد شاه خان
حفاظت کښې وساتلے شول. او د گرفتار کسانو دغه قافله په
۶ جنوري ۱۸۴۲ء د زیارت په ورځ په ډېر شرمناک او
ذلیل ډول کابل نه پېښور پلو روان شول چې د روستو د دوئي
پوځ لوئي تعداد پښتنو په لار کښې قتل کړل چې انګرېز سرکار
امیر دوست محمد خان سر دوباره امیر افغانستان مقرر،
بحال، تسلیم او آزاد کړو ـ نو دغه بونګا گرفتار کسان په
۲۰ ستمبر ۱۸۴۲ء آزاد شول ـ

د افغانستان په دې اولنۍ جنګ کښې:

د انګرېز سرکار شپاړس زره لښکر بیخي ختم او قتل شول ـ
صرف یو ډاکټر براڈن په سپین خر زوړند یې
رورسېدو ـ او انګرېز سرکار یې د دې زبردست قتل
عام نه ښه په تفصیل خبر کړو ـ

---

[1] لېډي سېل د **Disaster in Afghanistan.**
په نوم کې د دغه تباهۍ یو اوږد روئیداد
خود نوشت کړو.

" The messenger was Dr. Brydon, and he now reported his belief that he was the sole survivor of an army of some sixteen thousand men. Dr. Brydon's story has few parallels in history. A British Army of 4000 fighting men, with 12000 followers, had disappeared in the course of a few (65 days) days. Some had perished in the snow, other had fallen victims to a savage enemy. a few had been carried into captivity."

Frontier and OverSeas expedition from India Page-375.

(ترجمه) " قاصد ډاکټر براېډن وو او هغهٔ پوره یقین څرګنده کړه وی
چې هغه د شپاړس زره لښکر واحد ژوندے تن دے. د ډاکټر
براېډن دردېدلے داستان د تاریخ په صفحات ثانی نهٔ لری
د انګریز څلور زره جنګجو فوځ او دولس زره نوکران پنځه
شپیته ورځو کښې ختم شول په واوره کښې او څوک د
خطرناک دښمن د لاسه قتل شول او څینې ګرفتار شول.

Matters continued seemingly quiet at Kabul, and Shah Shuja firmly placed, untill September 1841, when disquieting rumours of plots and disaffection began to be circulated.

Muhammad Akbar Khan, Aminullah Khan, Abdullah Khan and other Afghan Chiefs were then infact preparing their countrymen for the outburst of that storm which in the end destroyed 4500 of our fighting men and 12000 followers between Kabul and Fatehabad, leaving only one solitary Englishman- Dr. Brydon-to escape to tell the story to the beleaguered garrison of Jalalabad."

Eighteen years in Khyber by
Robert Warburton-page-3

ترجمه، په کابل کښې حالات ظاهراً اسم دم او تسلي بخښي ښکاريدل او شاه شجاع تر ستمبر ۱۸۴۱ء په تخت مضبوط ناست وو. چې يو ناساپه د ساز شونو نا قراره افواه گانې او بې اطميناني شروع شوه. محمد اکبرخان، امين الله خان عبدالله خان او نور پښتانه مشران په اصل کښې لگيا وو. چې خيل هم قوم پښتانه راو پارَوي او داسې طوفان ورولي کوم چې زمونږ. تخلورنيم زره جنگجو ځوانان او د کابل او فتح آباد ترمنځ دولس زره نور ملکوي نيست ونابود کړل او صرف ايکې يو انگريز ډاکټر برائيډن پاتې شو چې د جلال آباد په قلعه کښې د محاصره فوځ داستان بيان کړي.

د انگريز سرکار د دې زبردست شکست ناکامي او غلطي پالسي په نتيجه کښې تاج برطانيه لارډ آک لينډ وطن ته واپس وغوښتو او د هغه په ځائې ايلن بارو د هند گورنر جنرل مقرر شو. د نوي گورنر جنرل اول کار دا وو. چې د انگريز سرکار ختم وقار او شان بيا بحال کړي. هغه پښتنو د خپلې بې عزتې د بدل اخستو په غرض يو لوئې لښکر د پولاک د سپه سالارۍ تحت د پېښور په لور را ولېږلو. د سکه سرکار په امداد انگريز لښکر په ۵، اپريل ۱۸۴۲ء د خيبر غرونو کښې داخل شو. خو ډېر په مشکله على مسجد ته ورسيدو خوف و دهشت په دوئ سوروو. پولاک د خيبر غرونو

دغه جلال آباد ته د رسېدو په کشمکش وو چې د غلته
د شاه شجاع د قتل (۵ اپرېل ۱۸۴۲ ع) خبر هم ورته ورسېد او
ډېر پرېشان شو. خو د وایسرای د واضح احکامات په سبب
مجبوری وه. آخر کار په ۱۷ ستمبر ۱۸۴۲ ع کابل کښې داخل
شو. جنرل سېل د استالف، چاریکار، چهار چوک آبادۍ
ختم او ویران کړې. او چې د پښتنو جرګې او مشورې د
انګرېزو خلاف کېدې نو جنرل پولاک، جنرل ناټ او
جنرل رابرټ سېل په ۱۲ اکتوبر ۱۸۴۲ ع کابل نه د واپسۍ
په لار وو. د فیروز پور په مقام د دې نام نهاد فاتحانو
زبردست استقبال وشو او د سر جاسپر نکولس تحت د
خلو بېښت زره سپایانو په شمولیت د جشن مظاهره وشوه.
د شاه شجاع دوه زامن شهزاده شاه پور او شهزاده نادر لدهیانه
کښې د انګرېز سرکار د شپږ سوه روپو.
وظیفه خوارۀ شول. د هند ګورنر جنرل دغه ټولو غصه
خوړېږدلې چې هغه د جنرل پولاک، جنرل ناټ او جنرل
رابرټ سېل تحت د پښتنو قتل عام چا ته او روا وګڼلو بلکه
د یو اعلان مطابق د هند په سیمه سومناتو کاله آګاهو
آبادو هېله پښتانه یې خپل ملک ته په واپس تګ مجبور
کړل. (افغانستان ازمیکمن ص ۱۵۵) د امیر دوست محمد خان

د افغانستان په تخت سر دوباره بحالی د انګریز سرکار مجبوری
ده. او بقول آرتهر سوینسن:

In January 1843, a horseman rode out of the gates of Lahore and headed North for the Indus. This was Dost Muhammad, who with the blessings of the British, was now on his way to Kabul to ascend the throne of Afghanistan for the second time. His mood was determined rather than triumphant; his country was torn and disaffected, and the situation on the North-West Frontier was still dark and uncertain.

N.W. Frontier Page-84

ترجمه: په جنوری ۱۸۴۳ء کښې د لاهور د دروازو نه یو
اَس سُویو کَی شمال طرف د دریابِ سنده په لور روان شو
دغه سړے دوست محمد خان وو چې د انګریزانو د مهربانۍ
په برکت اوس کابل ته په لاره وو .... چې د افغانستان
په تخت دوباره کښېني. د هغهٔ طبیعت او مزاج فاتحانه وو
ځکه چې د هغهٔ وطن اوس وران او بې خونده وو. او د شمال
مغربي سرحد حالات تور تیپ او غیر یقیني وو"

د افغانستان په تخت سر دوباره بحالی د انګریز سرکار مجبوری

۲۵ : او بقول آرتهر سوینسن :

In January 1843, a horseman rode out of the gates of Lahore and headed North for the Indus. This was Dost Muhammad, who with the blessings of the British, was now on his way to Kabul to ascend the throne of Afghanistan for the second time. His mood was determined rather than triumphant; his country was torn and disaffected, and the situation on the North-West Frontier was still dark and uncertain.

N.W. Frontier Page-84

ترجمه : په جنوری ۱۸۴۳ کښې د لاهور د دروازو نه په اس سور یو کس شمال طرف د دریاب سنده په لور روان شو دغه سړے دوست محمد خان وو چې د انګریزانو د مهربانئ په برکت اوس کابل ته په لار وو ..... چې د افغانستان په تخت دوباره کښېني - د هغه طبیعت او مزاج فاتحانه وو ځکه چې د هغه وطن اوس ګډوډ او بې خونده وو - او د شمال مغربی سرحد حالات تور تیپ او غیر یقینی وو ؛

# یو سرسري جائزه

مونږ چې د پاک و هند د تواریخ په صفحاتو نظر اچوو
نو معلومیږي چې چندرګپت اولنی بادشاه دے. چاچې په
۳۰۲ ق.م کښې د سکندر اعظم د وفات نه پس د هغه یو جرنیل
سلیوکس نکتار نه دریایې جهلم نه ښکته د هند په زمکه
شکست ورکړو او چندرګپت د پښتونخوا[1] په سیمه د بلخ
د هندوکش تر غرونو د هندوستان بادشاه تسلیم شو
او دغسې د پښتونخوا سیمه د موریا خاندان د آخري
حکمران اشوک اعظم تو مرګ (۲۳۲ ق.م) تقریباً او یا کاله
هند څخه شامل علاقه وه. موریا اولنی حکمرانان ښکاري
چې د پښتنو په علاقه یې د مشرق یعنې هند له اړخه
بادشاهي قایم کړه. د پښتونخوا سیمه عموماً د پورته
بهرنۍ قوتونو د حملو د ښاد او تورې لاندې وه. او د اعلا

---

[1] خوا په معنی د ناحیې -

د مغرب له لوریه د حمله کوونکو په هندوستان د حملې اولنۍ
پړاؤ او منزل وو.

داخامني، کله د سیتهین، ساکا، ایشتومن او یونانیانو ماتحت
وه. کله آزاده وه او کله د یوچي کشن، کیدارکشن، هفن او
ساساني بادشاهانو ماتحت علاقه وه. د اسلام د راتګ نه
اګاهو د پښتونخوا سیمه د جهلم دریاب پورې اول د بدهمت
د کتورمن خاندان او بیا د برهمن د هندوشاهیه ماتحت علاقه
وه. د کتورمن خاندان بادشاهت د غور، تخارستان (راوسنې
قندوز) بست، غزني، کابل، لغمان، کافرستان، (روه) اټک او
جهلم په علاقو قائم وو. د بدهمت د کتورمن خاندان
اخري بادشاه کانک وو. د کانک د زوال اصلي محرک د
هغهٔ یو وزیر وو چې نوم یې کلر وو. د کلر په نوم اوس هم د
پنجاب په سیمه کلرکهار. یعنی د کلر ښار) د سنسکرت کهه د عربي
فارسي ښار) شهرت لري. دغه وزیر دومره بااثره او مضبوط
وو چې کانک نه یې دوه ټول سلطنت قبضه کړو. خو دې جنګ
و جدال نتیجه د کتورمن بدهه شهنشاهیت دومره کمزور
شو چې اخیر کار بادشاهت د هندوشاهیه برهمن لالیه
قبضه کړو.

لالیه ۸۷۰ء تا ۸۹۲ء پورې د پښتونخوا بادشاه وو.
حکومت یې کابل نه تر جهلم وو. او پایه تخت یې دریایې سِندهٔ

ته راپورته کړ، "هند" په مقام وو. د لالیه د مرګ نه وروستو
سمنته ۸۹۲ ع نه تر ۹۰۲ ع، کملو ۹۰۲ ع نه تر ۹۲۶ ع، بهیم پال اول
۹۲۹ ع نه تر ۹۶۲ ع، جے پال ۹۶۲ ع نه تر ۱۰۰۲ ع، انند پال ۱۰۰۲ ع
نه تر ۱۰۱۳ ع. تریلوچن پال ۱۰۱۳ ع تا ۱۰۲۲ ع او بهیم پال II
۱۰۲۲ ع نه تر ۱۰۲۶ ع بادشاهان وو. د تریلوچن (تروجنه) د مرګ
نه پس محمودِ غزنوی د هندوشاهیه بالکل اره حکمرانی ختم
کړه. بهیم پال دویم بې سلطنته بادشاه وو. د هغه د مرګ نه
پس هندوشاهیه شهزادګان کشمیر ته وتښتېدل او هغوی
باقی ژوند د کشمیر د حاکم په رحم و کرم او وظیفه تېر کړو.

دې کښې شک نشته چې چند رګپت په اول کل د
هندوستان د پاتلی پترا (پټنه) له لوریه د پښتونخوا په
سیمه قابض شو. او د صلحنامې مطابق یې د دې علاقې په
عوض سلیوکس ته پنځه سوه هاتیان ورکړل خو داهم ممکن
ده چې د پښتونخوا په سیمه د قبضې تلوسه د چند رګپت موریا
په حکومت کښې د ګند هارا وسیدونکی او د موریا سلطنت
وزیرِ اعظم، سپه سالار او مشیرِ خاص چانکیه (کوتلیه)
مصلحت وی. د اشوک اعظم د مرګ نه پس په دې سیمه د مشرق
بالادستی ختم شوه. او حسبِ سابق د مغرب له لوریه حاکمیت
او تسلط جاری وی. د بده مت کتورمن او برهمن هندوشاهیه
د دې ځایې او خاورې وسیدونکی بادشاهان وو. او د مشرق

مغرب لہ اړخه راغلی نهٔ وو.

دچندرګپت نه تقریبًا دوه زره کاله پس رنجیت سنګه دویم فاتح دے چې د مشرق له اړخه یې د پښتنو په سیمه سکه سلطنت قائم کړو. د موریا او سکه د پښتنو په سیمه د سلطنت په قیام کښې غټ بنیادي فرق دا دے چې موریا سلطنت کښې د پښتونخوا ټول علاقه شامل وو. سکه سلطنت کښې د پښتنو نیمه برخه علاقه شامل وه. نتیجه دا شوه چې پښتانهٔ په روميي حل د تاریخ په تسلسل کښې په دوو برخو کښې ویشي شول. ځکه چې سکه لښکرو د خیبر په تورو غرونو کښې د پیشقدمۍ نه خائف وو او کابل کښې امیر دوست محمد خان مضبوط حکمران وو. د سکه سلطنت ۱۸۴۹ء کښې زوال نه پس دا سیمه د انګریز سرکار په وراثت شوه او ۱۹۴۷ء نه پس په دې سیمه د پاکستان حکومت قایم شو او دغسې د پوکلچر، تهذیب، ژبې، بودو باش، رسم و رواج او جغرافیائي ترون استوګن د دوه مختلف حکومتونو تحت شول. خو د دواړو غاړو پښتنو د هند یا روسي تهذیبي اثرات با وجود خپل روایات، پښتونولي، ننګ و غیرت مهمان نوازي او نور د پښتني اقدار امانت او محفوظ ساتلی دی.

چندرګپت د سلیوکس یو د پرلویې یوناني لښکر ته

شکست ورکړو. نور نجیت سنګه د سدوزي او بارک زي
سردارانو ترمنځ جنګ جګړو نه فائده پورته کړه. او د
کوزي پښتونخوا په ډیره برخه یې په آسانه قبضه وکړه. د
پښتون قوم بدقسمتي وه چې یو اړخ د هند په ډیره برخه مرهټه او
سکه منظم کېدل. او بل اړخ د سدوزي ورونو ترمنځ د
اقتدار جنګ. د سدوزي او بارک زي تربګنۍ او دښمنۍ او
وروسته د بارک زي ورونو ترمنځ کېنې د اقتدار جنګ داسې
زړه سواندي واقعات او حالات وو چې د پښتونخوا په ډیره
د سکه سلطنت د قیام ضامن شول. د پښتنو ملي وحدت
دړې وړې شو. او پښتون په دریو برخو کښې وېشل شو. د
افغانستان پښتانه، د بلوچستان او کوزي پښتونخوا پښتانه. د
سکه سلطنت په دې ډیره تقریباً یو دېرش کاله بالادستي،
حکمراني او ظلم و بربریت نه پس انګریز مسلط شو. هغوی د
پښتنو مزید وېش کښې نچل خپل لیډ و. د قبایلي علاقې تصور
پیدا شو. د سوات، دیر، چترال او امب وغیره ریاستونه جوړ
شول.

د تیمور شاه د وفات نه پس د پښتنو په ډیره د فرد واحد
بادشاه تصور ختم شو. سدوزي ورونه په مختلفو علاقو
بادشاهان شول. پېښور عباس مرزا، کابل زمان شاه، قندهار
همایون او هرات کښې شاه محمود بادشاهان شول. او په دې ذد

دَيوبل وينو ته تړي کښېناستل. خوهرکله چې شاه محمود او دَ هغهٔ زوی کامران چېلن مشهور وزير فتح خان بارکزی قتل کړونو دَ هغهٔ سکه او مېړنی ورونه دَ سدوزي حاکمانو خلاف راپاسېدل او مختلف علاقو کښې يې ځان حاکمان اعلان کړل. قندهار، پُردل خان، شېردل خان او کُندل خان وغيره ورونو واخېستو. سُلطان محمد خان کوهاټ سيد محمد خان هشت نګر، پير محمد خان دوآبه او يار محمد خان پېښور واخېستو. کابل، محمد عظيم خان، غزنی، دوست محمد خان او کشمير عبدالجبار خان قبضه کړو. او دغسې دَ احمد شاه ابدالی مضبوط حکومت ټوټې ټوټې په تقسيم شو. رنجيت سنګه دَدې ورکوټي کمزور راجدهانو او دَ بارکزی ورونو ترمېنځ دُشمنۍ او ترونکتي نه فائده پوره کړه او ډېر په آسانه دَ کوزې پښتونخوا په علاقه او اټک وکشمير قابض شو.

دَ افغانستان دَ سيمې دَ پښتو په لب ولهجه دَ فارسۍ او روسی زبو اثرات او دَ دې اصوبې په پښتو دَ اُردو او انګرېزۍ اثرات هم شو. دَ سياسی مصلحت او خود غرضه مقاصدو په بنا، نفرتونو، کرکې او تعصّبات ته هوا ورکړې شوه. او دَ يو نيکهٔ اولاد او يو نسل خلق يو بل نه داسې جُدا، وړاره او بېګانه شول چې شايد History Repeats itself

په مصداق دَ تاريخ دَ چورلنده چکر په داسې زر به ته

خپل ځائې ته واپس راشی. او د دوارو پېمو پښتانهٔ بېرته یو
ځان څېکړشی. د سوچ و فکر هم اهنګی. د نورو د اثرات نه
د ژبې او کلچر ازا دی. خپل روایات او پښتونولی زمونږ د وحدت
بنیادی ضروریات او لوازمات دی. او هغه کمزوری، خودغرضی
نفاق او جهالت ځان نه لرې کول دی چې خوشحال خان خټک
په خپله شاعری کښې څوکړ ته په ګوتو کړی دی.

ه

پښتانهٔ په نوره نشهٔ دی ترمغلو    کهٔ په پوهه پښتانهٔ وې ځهٔ هوښیار
هرچار د پښتانهٔ ترمغل ښهٔ دهٔ    اتفاق ورسره نشته دې ارمان
نن به درست د هندوستان دولت د دوی وو    پښتانهٔ کهٔ کم همت نهٔ وې جهال

خدائے دې ورک د پښتنو کا دا درې توکه
یو بد جهل، بل بد نیت، درېم نفاق

# کتابیات

## انگریزی


1- A Book on the History of the Punjab 1799-1947
BY
Ikram Ali Malik
Research Society of Pakistan University of Punjab Lahore.

2- Ahmad Shah Durrani BY Sardar Ganda Sing.

3- Eighteen Years in Khyber By Robert Warburton.

4- Evolution of Heroic Traditions in Ancient Punjab
BY Buddha Parkash

4- Frontier and OverSeas expeditions from India
P-375 by NISA Traders.

5- Imperial Rule in Punjab 1818-1881
BY J.Royal Roseberry.

6- Later Mughal History of Punjab BY Hari Ram Gupta.

7- Punjab Castes BY Sir Denzil Ibbetson.

8- Punjab Edited BY Zulfiqar Ahmad,
Sang-e-Meel Publication Lahore.

9- Punjab under the Later Mughals BY Dr. B.S. Nijjar.

10- The Punjab A Hundred years ago BY H.L.O. Garrett.

11- The Punjab as A Sovereign State 1799-1839
BY Gulshan Lal Chopra

12- The Evolution of N.W.F.P.
BY Rai Bahadur Diwan Chand Obrai.

## اُردو


۱: بہادر شاہ ظفر — رئیس احمد جعفری

۲: تاریخ پنجاب — کھنیہ لعل (مطبوعہ ۱۸۷۵ء)

۳: 〃 〃 — سید محمد لطیف

۴: 〃 〃 — اقبال صلاح الدین

۵: 〃 ضلع پشاور — گوپال داس

۶: 〃 یوسف زئی — روشن خان

۷: حیاتِ افغانی — محمد حیات خان


## پښتو


۱: دَ پښتو تاریخ — قاضی عطاء اللہ

۲: ھار و بھار (پښتو ترجمہ) — دارمستیتر


---

# PUNJAB

# &

# PUKHTUNS

( Sikhs Period)

*BY*

KHAWAJA MUHAMMAD SAYEL